3


د ۱۳۵۱ لمریز کال
دغبرګولي میاشت
دریمه ګڼه

پر له پسې ګڼه ۱۴۱
د تأسیس کال ۱۳۳۹




# کندهار

مجله


د اطلاعاتو او کلتور
میاشتنی خپرونه




زموږ محبوب ټولواک معظم همایوني اعلیحضرت د هیواد د خپلواکي
ستر حامي چې د شاهانه ذات د سلطنت په ځلانده دوره کې
زیات پرمختګونه د ګران هیواد په برخه شوي دي


د یوې ګڼې بیه دري افغانی



اعلیحضرت شهید سعید محمد نادر شاه غازی زمونږ
د خپلواکۍ د بېرته اخستلو د معرکې ستر قهرمان



د کابل فاتح والاحضرت مارشال شاه ولی خان
غازی چې د خپلواکۍ د بېرته اخیستلو
په معرکه کې ئې نه هېرېدونکې
مېړانه ښکاره کړېده



مرحوم والاحضرت سپه سالار غازی
شاه محمود خان د پیواړ فاتح

# د کندهار مجله

د امتیاز خاوند: د طلوع افغان نشراتي مؤسسه
د مسؤل مدیر وکیل: غلام محی الدین (ایوبی)
مهتمم: عبدالکریم (طالب)

## لیکونکی پلاوی

عبدالقدوس (نجیب)
احمد (راشد)
عبدالمنان (امین)
میرمن ملاله (اڅکزی)
طباعتی همکار محلمی (بارك)
اداره: د شهیدانو واټ
د ټلیفون لمبر ۲۸۸۴




د ۳۱۲۵۱ کال د غبرګولی میاشت

# زموږ یوه ستره ملی خاطره

څلور پنځوس کاله د مخه د جوزا په شپږمه ورځ افغان قهرمان او آزادی غوښتونکی اولس د خپلو سرتیرو مشرانو او فداکارانو غازیانو په مېرانه او ننګیالی توب خپله پوره خپلواکی بیرته لاس ته راوړه او دا دی تر اوسه

خپلواك ژوند کوی او اوس د خپل محبوب او ترقی غوښتونکی ټولواك اعلیحضرت المتوکل علی الله محمد ظاهرشاه په ځلانده عصر او نیکمرغه سلطنت کی

د نیکمرغه، لوړ او بهترین دهری وژند خواته ډیر او کوشش کوی او غواړی چی د یوه پرمخ تللی هیواد په حیث ژوند وکړی او د خپلو خلکو علمی، اقتصادی

او مدنی سویه پرمخ بوزی او خپل ژوند د مخکی تللو هیوادونو په څیر وګرزوی.

که څه هم دا ورو ستی حلوچی زموږ ننګیالی او اوتوریالی ولس د لویدیځ استعمار «انګلیس» سخت

تعرض او مقاومت د هیواد د جنوبی سیمی په «تل او وانه» کی مات او هغه نی دی ته اړ کړ چی زموږ خپلواکی بیرته په رسمیت ومنی، خو تر دې د مخه انګلیسی استعمار ته

په لومړی او دوهم جګړه کی هم د زړورو افغانانو د خوا سختی ماتی ورکړه شوی دی چی انګلیستان ئی هم پخپله منی. تر انګریزانو ډیر د مخه لا هم سکندری،

چنګیزی، مغولی او داسی نور تاړاکونه د دې سپیڅلی مځکی د نیولو د پاره د سختو مشکلاتو سره مخامخ شوی دی.

په دې توګه افغانان د آزادی غوښتنی د جنبش اساس ایښوونکی او بانیان بلل کیږی چی په اسیا، افریقا او لاتینه امریکاکی ئی د آزادی غوښتنی او

خپلواکی جذبات پرڅو ورا و ستل او افغانانو دا ور ته ثابته کړه چی د ملی قیام په وړاندی د استعمار زوال یو لازمی امر دی. نو هغه وچی د نړی په ګوټ ګوټ کی د امپریالیزم پرضد مبارزی شروع شوی او د نړی ډیر هیوادونه یو په بل پسې خپلواك او آزاد شول.

د آزادی د بیرته اخیستلو خاطره ځکه موږ ته ستره او ملی خاطره ده چی زموږ تور یالیو پلرونو د سرونو او مالونو په قربانولو سره دا خاطره د تل د پاره ژوندۍ وساتله او د خپلو تیرو نیکونو پر پله ئی ګامونه کیښودل

او دا خاوره او د دې خاوری خپلواکی ئی موږ ته د یوه ستر ملی امانت په حیث وسپارله او موږ ته هم په کار ده چی

خپله خاوره او د پلرونو او نیکونو ټاټوبی خپلواك مترقی اوودان، خپلو زامنو ته وساتو او په د غه لار کی د خپلو ننګیالیو پلرونو په څیر پر ټولو مشکلاتو د اولوالو

د صداقت، فداکاری او وطندوستی څخه کار واخلو.

# د مور د ورځې

## په مناسبت د اعلیا حضرتې معظمې ملکې پیغام

## بسم الله الرحمن الرحیم

مور د ټولو پرونیو او ورځو سره د نن ورځې د ټولنو حلقه ده ددې دارزښتنا که مقام نمانځل په حقیقت کې د پرورښت او ژوندانه د دغو ټولو نمانځل دی ځکه انسانی فرهنګ د ګډ ژوند د عناصرو څخه تر ټول عنصر د مور مرهون وی .

مونږ د مور په غیږ کښې د فرهنګی ارزښتونو اساس ږده کوو او د انسانی تاریخ تسلسل د هغه په واسطه ساتو .

د مور مینه کې لومړنی هنداره ده چې په هغې کې مونږ خپله پیوند ګلوی د محبت د مفهوم، د پاکې اندیښنې د مفهوم، د کورنی د مفهوم ژبې یدو ځای او وطن مفهوم او نورو لویو مفهومونو سره چې د انسانی ژوند اساس په ښو اخلاقو بانده دروی شروع کوو .

مور زموږ لومړنی ښوونکې ده. د اسې ښوونکې چې د فکر او قوت احساس موږ ته ښیی .

ددې غیږ زموږ او زموږ د تربیه کولو د پاره د ټولنی د یوه ګټور غړی په حیث چې په هغه کښې ژوند کوو، وقف سوېدی .

د خدای (ج) شریعت، ملی قوانین او زموږ سنن د فطری او فرهنګی ارزښتونو له مخې د مور مقام ته یو خاص اهمیت ورکړی دی او ددی مسلمان او لرغونی هیواد ثقافت د مور هسک مقام د خلکو د ادب په ودشو کې احاطه کړی دی .

تر هر شي ښه هم داده چې د مور احترام پر ځای



اعلیا حضرته معظمه ملکه د افغانستان د ښځو نهضت حامی او ساتندویه

او د هغې تربیې ته توجه ورګرځول شي .

موږ چې هر څومره کوښښ وکړو چې د مور د پوهې افق ته پراختیا ورکړو او ددې صحي او اجتماعي حالت ته ښه والی ورکړو د عقل د سلامتی او جسم د صفائي په پیمانه سره به د خپلو اولادونو تربیت ښه تر ا تضمین کړو .

په دغه بختوره ورځ کی د خپل محبت پیغام ټولو افغانی میندو ته استوم او د پاک خدای (ج) د لوی دربار څخه ددوی لپاره د اهمیت لرونکی دول او ښې وظیفې د سرته رسولو د پاره توفیق غواړم .

د مور د لوړ مقام او نقش د نمانځلو په غرض ددې خاوری د ټولو اولادو لپاره توفیق زما هیله ده .

د اکاډمی کتیبات له خپری سوی رسالی څخه

د لچسپ ترجمه

Academic
InsceiFtions
Et-belles letters

# د کندهار د اشوکا دوهم مېندل سوی فرمان

ښاغلی دانیل شلومبرژی د کندهار د آشوکا د مېندل شوی لومړی کتیبې مترجم د دوهمی کتیبې حل په یوه مستقله رساله کی چه D une nouvelle inscription.
Ack. par. M. danicl
Schlumbberges. membre
de. L academie

نومېږی په لاندی ډول سره کړیدی د آشوکا د کتیبو ترمینځ لوړ مخه خلکو د هغه پاچا د پاچهی په باره کښی

له افواهو د داستانو څخه کار اخیستی او کوم مستند اثر په منځ کښی نه ؤ چی د هغه په استناد سره ئی د هغه داستانو

اشتباه ی رفع کړی وای مګر له هغه مرغه کله چی په ۱۸۳۷ کال کښی یو هانو د اډول کتیبې ومیندلی او په ویلو سره ئی موفق شول نو د آشوکا تاریخ تر یوی اندازې

پوری روښانه او د اصلی حقیقت له مخی څخه پرده ئیم کښه شوه.

(بلوك) د آشوکا د کتیبو د تعلیقاتو په رساله کښی چی په ۱۹۵۰ کښی په پاریس کښی نشر شریده لیکی چی

آشوکا د موریه کورنی یو مقتدر ټولواك ؤ. دده په دوره کی ټوله هند متحد او حکومت ئی پر ته د شرق اقصی او جنوب اقصی څخه پر ټوله هند خپور ؤ.

د کندهار کتیبو موږ ته دا ثابته کړه چی د نوموړی ټولواك حکومت په افغانستان کښی د جنوب ختیځ تر څنډو پوری

احتوا درلوده او بل د دغو کتیبو متن د اشوکا هغه خپاره سوی فرمانونه دی چی دده پخپله ژبه سره و موږ ته نصیحتونه

کوی او ټوله رعیت که بودستانیان دی یا نور ګماشتګان وحق او حقیقت ته رابولی او د دوی ژوند په اصلی مفهوم چی له نیکو اخلاقو څخه عبارت دی، بوهوی. د نوموړو

کتیبو د لیکنی طرز هغه هندی لهجی دی چی د متن ترجمه ئی هر څېلو لو ګټ او یاد کتیبو مترجم له ډیرو مشکلاتو سره مخامخ کوی خو سره له دې چی انکشاف و موږ ته

نوی روښنایی ورا کوی او د موږ سره د قبل الاسلام د تاریخ په روڼولو کښی ډېره مرسته کوی.

دا نوی کتیبه چی په ۱۹۵٤ عیسوی کال کی د کندهار په زاړه ښار کښی مېندل شوی ده فقط په یونانی ژبه لیکل

شوی او د دغه ځای تر د مخنی مېندل سوی کتیبې اوږده او د دوه و یشتو لیکو لرونکی ده مګر افسوس چه په شروع او ختم کښی نامکمله ده او ګومان کیږی چی متن ئی

پر متعدد و ټوټو پشل شوی او نوری ټوټی ئی لا تر خاورو لاندی پرتی وی. دا کتیبه د دولسم فرمان له مابین څخه شروع شوی او پر دیرلسم فرمان ختم شوی ده. مفهوم ئی د کالنګه د جنګ حالات او د بودیزم د مذهب موعظه ده

چی په تاریخی و ثایقو کښی زیات اهمیت لری او موږ په دې ځای کښی د نورو کتیبو و کشف ته اړه یاسی او ټینګ امید لرو چی د کابل د لرغون پېژندنی انجمن او بازموږ

دا انجمن په زیار سره به د هغو په مېندلو کښی بشپړه توجه وشی په دې توګه ئی پرځان باندی لازمه ګڼم چی د کابل د موزی له مدیریت څخه د زړه له کومی تشکر و کړم چی مدام له موږ سره د داسی پوځو خزانو په راپرسېرولو

کښی مرسته کوی دا کتیبه چی ما ئی د رساله په باره کښی لیکلی ده د کابل په موزه کښی پرته او هر څوك ئی لیدای شی.

د کندهار د نوی مېندل سوی کتیبې ترجمه:

تقوی په ټولو مذهبو کښی خصوصاً پر هغو کسانو باندی ډیره لازمه ده چی د وی خپل ځان پېژندلی وی،

پاته په ۳۵ مخ کی



تهیه کوونکی : خالقی

# شوروی اتحاد ته
## د ریچارډ نکسن سفر

شوروی اتحاد ته د امریکا د متحده ایالاتو د جمهور رئیس ریچارډ نکسن سفر د هغو مهمو سفرونو د جملې نخښه دی چې په دې ورو ستیو کلونو کې د هیوادونو د مشرانو په سویه کیږی . د جمهور رئیس نکسن دغه سفر

د ده د جمهوری ریاست د دورې د مهمو واقعاتو نخښه دی او ده په دې سفر کښې د سولې د کوښښونو په باب یو کریډت ترلاسه کی .

شوروی اتحاد او چین ته د نکسن د سفر په لار کې یو لوی مشکل چې پروت ؤ هغه د ویتنام څو کلن جنګ ؤ، چې په دې وروستیو کلونو کې یې کمبود یا ته هم غزونه وکړه خصوصاً په هغه وخت کې چې نکسن شوروی اتحاد ته

تللی دغه جنګ یو خطرناک حالت ته ورسید او سیاسی مبصرینو دا فکر کاوه چې د نکسن دغه سفر به هم لکه د ۱۹۶۰ کال د ایزنهاور او خروسچف د کتنې په څیر

او یا په ۱۹۶۲ کال کې د کنیډي او کاسګین د کتنې او یا په ۱۹۶۸ کال کې مسکو ته د لیندن جانسن د ناکام سفر و په شان چې لومړی سفر د امریکایی (U2) الوتکې د الوتنې په نسبت چې د شوروی اتحاد په خاوره کې الوتنه کړې

وه او دوهم او دریم سفر د کیوبا او چکوسلواکیا د پېښو تر تأ ثیر لاندې راغلل ، بنایی مسکو ته د نکسن دغه سفر هم هغه ډول شکل خا نته واخلی .

خو د دواړو خوا وو د پیشبینۍ په اثر دغه سفر بېله کوم ځانګړي نخښه وسو او په همدې ترتیب د شوروی اتحاد مشرانو دا څرګنده کړه چې د امریکا په مقابل کې د دوی خارجی سیاست نسبت د خروسچف حکومت ته په یوه واقعبینانه اساس باندې ولاړ دی .

څرنګه چې د ویتنام د کشالې د پاره د حل د یوې سیاسی لارې پیدا کول په داسې حال کې چې د پاریس د سولې کنفرانس د څو کلن کوښښ سره سره بیا هم د ناکامۍ سره مخامخ

دی نو د نکسن په دغه شپږ ورځني سفر کې به په څه ډول د غه کار سرته رسیدلی وای . په داسې حال کې چې سربېره په دغه موضوع د ستراتیژیکو سلو د کمولو، د اروپا او منځني ختیځ او په دواړو هیوادو پورې مربوط تجارتی موضوع ګانې هم

باید د نکسن په دغه سفر کې تر بحث لاندې نیول سوې وای خو که بیا هم د واړه خو اوی د دغې موضوع او د یو شمېر کلیاتو په باب موافقې ته ورسیږی دا کشاله

به خپل شدت د لاسه ورکړی . او د پاریس د سولې د کنفرانس د مساعد بدو د پاره به زمینه برابره سی .

نکسن په دغه سفر کې څرنګه چې د ویتنام په باب یو ښه چانس لاس ته را نه وړ خو دا رو پا په باب یې یو ښه چانس ترلاسه کړ . ځکه په همدغه وخت کې ؤ چې د المان د اتحادی جمهوریت پارلمان د بن د حکومت موافقې د مسکو او وارسا سره تائید کړې .

د ستراتیژیکی وسلو د کمولو موضوع چې د شوروی اتحاد او امریکا د مشرانو د خبرو لومړنۍ موضوع وه ، په حقیقت کې د نړۍ ټولو سیاسی او

نظامی مسئلو مهمه وه . ځکه د لویو هیوادو ترمنځ په ذروی ساحه کې تسلیحاتی مسابقې، خصوصاً د امریکا او شوروی اتحاد ترمنځ یوې داسې مرحلې ته رسیدلې دی چې د مځکې پر مخ د بشر د تمدن او ژوندانه

د دوام له پاره یو مستقیم خطر بلل کیږی . او د لویو هیوادو مشران د خپلو هیوادو د خلکو او د نورې نړۍ د خلکو په مقابل کې مجبوره دی چې د داسې مسابقو مخه ونیسی .

د دواړو روستیو کلونو په موده کې چې د هلسنکی او ویانا په کنفرانسو کې د دغې موضوع په باب د امریکا او شوروی د متخصصینو ترمنځ یو اندازه پرمختګونه په برخه سوی دی هیله ده چې دغه دواړه هیوادونه د دغو

پاته په ۳۵ مخ کې

د سیع ابن په قلم

# د کندهار په چارده کښې یو ناوړه دود

د کندهار په جنوب لوېدیځه خوا کښې د چارده او پنج دهٔ په نامه سره دوه ځایه دي چې بارکزي پکښې او سپینزي په دوی کښې ځینې دود او نښته چې د کندهار په ښار او چاپېر کښې وجود نه لري .

هر سړی چې د دوی ځنې نجلۍ وغواړي تر یو پ قا کلې مودې وروسته د سمال اچوي چې دې دود ته دوی پښه‌اړ تیدل وایي . وروسته تر دې نو زوم کله کله

د خپل خسر کره ورځي د سمال اچو لو په لومړۍ شپه چې تر پورې خوښه لوور وسته د زوم خپلوان خپلو کورو ته رخصت شي زوم د خسر کره پاته شي د خوب تر وخت د مخه خوا ښې او د ناوې نورې خپلوانې ورځي لومړۍ

زوم گوري ځه مجلس و د سره کوي بیا تر ناوې او دې سره پر بېدي او پخپله ځنې ژاوځي . د باندې ورته پټي شي دده خبرې چې د خپلې مېرمنې سره ئې کوي

د دوی معرفي چې د لومړي وار د یو اځی په لید لو سره کیږي هغه باید په وه چم د چمو و اوري تردې چې ځینې ښځې د زوم او ناوې د ملاقات په خونه کې دز و م تر راتګ د مخه په کندو، گو کلي او پا تي «کوړ» لاندې

ورته پو ټیږي د وی هغه کوي چې زوم په و نه پو هېږي . د مېرمه او ماینې لومړي خوږ مجلس پخپلو غوږو واوري او سهار بېله دي چې د نجلۍ ځه پو ښتنه و کړي

پخپله هم خبري وي . د خپل ساعت تېرې له پاره سهار ناوې هم مجبوره کوي چې د دې او مېړه په منځ کې د مر کې خبرې په ښکاره ډول سره په نورو ښځو هم واوري . که چېرې هغه ځینې خبرې نه کوي او یا شرمېږي هغه

باید چې هرو مرو د پټې شوي ښځې له خوا ښکاره کړه شي .

زوم هم په دې د ودسره لو مړۍ لا پو هول شوی وي

غواړي چې ځوک ورته پټ نه شي او خبرې ئې وا نه وري نو وړاندې تر ملاقات د پټو شوو ښځو پلټنه کوي هغه

باسي بیا نو په پوره ژړه خپلې خبرې کوي . د چغل بازۍ په دو همه شپه بیا د ناوې پر تر مجلس جوړو سته د خوب تر وخت د مخه د ناوې پورې ورته پر ي خپلوانې او د نجلۍ مور د زوم

سره په هغه قا کلي خو نه کې یو ځاې کیږي . نجلۍ هم د هغو سره یو ځاې وي . د ناوې لاس باید زوم په یو ه لاس سره د اسي ټینګ و نیولای شي چې ناوې ئې ځنې خلاص نه کړی هر ځو مره چې زوم په بدنې توان کې پر خپله ناوې

باندې غښتلی وی هغو مره د دی ښځې په نظر کښې درونډ او دوقار ځښتن گڼل کیږي . وروسته تر دې ازموینې نو بل د ستاینې وړ شی نه پاته کیږي . و اده او خوښۍ ئې

د نورو ځایو د دودو په شان وي . دواده په ورځ چې ناوې د پلار د کوره د انېره کړی ورا رخصت و اخلي د کلي قال

نوي ځلمیان لس کلن هلکان حتی په ډېره خلکت هم اشتراك پکښې کوي . ډول ورا باڼي په کاڼو ولي . د اکاڼې

پخوا پر هغه لار باندې چې ناوې وړه کیږي را غونډ شوي وي د لوټو ځنې هم کار اخلي . پر هیڅ یو ه ورا باڼي باندې ژړه سوی نه لري سر او پښې ئې نه گوري . یوازې ناوې

او هغه و گړي چې د هغې سره نژدې ځي د دې وښتلو ځنې ژغورل کیږي نور ټول له ورابانی که تر ناوي وړاندې دي که وروسته خامخا د تیږو وارد و ر باندې کیږي .

دا دود د خور اپخوانی زمانې ځنې په دوی کې شته

هر کله چې د دوی ځنې پو ښتنه وکړې چې تاسې ولې ورا باڼي په تیږو ولې یو هان او نا پو هان ئې دا بیت وایي

د پېغلو خولې د بل وطن دي
ځوک چې پر دې ملګو نه خوري سرور کوینه

د غه نجلۍ ژموږ د کلي خو رانږه دده د ې د پاره چې ځوك په سپکه سترگه ورته ونه گوري موږ ئې په ډبرو و لو . ځکه هر شی چې وړه باو لاس ته راشي هغه بیقدره وي په ځاې

موندلي دها ته نه لیري کیږي . د غې نجلۍ د دې کلي په

(پاته په ۳۴ مخ کې)

مصاحبه کوونکی تپاند صوفي زاده

# د عکاسي د دوربین څخه د سید عکاس څېره

## د دې مرکې په ترڅ کې د کندهار ۷۰ کلن هنرمند عکاس تاسې ته معرفي کوو

**هغه هنرمند چې د عکاسي البوم ئې انسان پنځوس کاله پخوا د نا آشنا خاطراتو سره مخامخ کوي.**

بېري وړو مخې، د افغاني خواصو سره سم لوی پر یقوته، خاکستري ږیرې او جذابو سترګو سید عکاس ته یو هنري بڼه ورکړې بده. قد ئې نسبتاً ټیټ خو مجلس ئې د لونډو او افسانوي خاطراتو څخه ډک دی.

له ډېره وخته مې په یاد دي چې کله به د ارګ له مخې تېرېدم یو سپین ږیری د هغه د کېمرې سره چې په درو پښو به ولاړه وه او ور باندې لګیا به و د څپل دوکان مخ کښې مې لیده نه پوهېږم چې د هغه لیده زما د پاره ولې په زړه پورې وه خو اوس نه یوازې د ده د هنر بلکه د هغه د ژوندانه سره هم آشنا شوم. د ادې زما سره په ئې یو ځای ګران لوستونکي هم وپېژني.



سید محمد عکاس

سید عکاس چې اصلي نوم ئې سید محمد دی ۷۰ کاله له دمخه د کابل په چارده کښې زېږېدلی خو عمر ئې ټول په کندهار کښې تېر شوی دی. د غه سپین ږیری عکاس چې تقریباً پنځوس کاله له دمخه ئې د عکاسي فن زده کړی بدی، تر اوسه ئې یو زیات شمیر د هیواد لرغوني شواهد او پخوانې څېرې د عکاسي د کاغذ پر مخ د تل د پاره ژوندۍ پرې ایښې دي. هغه آثار چې ده بې عکاسي کړي دي د ګه تعمیرونه او د زمانې څپو او تحولاتو له منځه وړي دي، که انسانان وه هغوی کې ئې لا خاوري شوي دي.

د دې د پاره چې د دغه هنرمند د هنر قدر وشي نو د هغه سره مې د مرکې تکل وکړ، د مرکې په ترڅ کې د دې پوښتنې په هکله چې څرنګه او څه وخت د عکاسي شوق ور سره پیدا شو داسې وویل:

- ښه مې په یاد دي هغه وخت لا ونډ و کی وم چې ډېره سخته وچکالي د تیر کال په شان راغلې وه نو اعلیحضرت امان الله خان خلک د ارغول کېږل او د شهدای صالحین خوا ته

(۶ مخ)

د دعا کولو د پاره روان وه په دې ترڅ کې زه هم ورسره ملګری سوم. د ټولو په مخ کې می یو سړی

ولید چې یوه توره قطی چې وله صندقچه ور څخه وه خلکو هغه له

مخې څخه لیرې کاوه چې اعلیحضرت امان الله خان ژغ پرو کې «دا عکاس

دی پرېږدي عکس اخلي» نو د لته زما سره دا احساس پیدا شو چې ښايي دا هم یو کمال وي او کرار

کرار می دغه احساس په زړه کښې پیاوړی کیدی تر څو چې بغداد ته



**سید عکاس د ځوانی په بهار کې**

می سفر وکړ د بغداد د تګ زما د پاره نیک شو او هلته می تردد وکا لو ور وسته چې د یوه ملګری په مرسته

می هو ټل جوړ کړی ؤ د عکاسی فن زده کړ او نور نو زه یو تکړه عکاس شوم، دوکان می خلاص او کار می شروع کړ. تقریباً لس کاله می هلته عکاسی وکړه. ښاغلی سید عکاس تر ډېر تفصیل وروسته مو چه مو چې

زه د بلی پوښتنې د پاره ځان جوړ وم داسې پوښتنه می ځنی وکړه چې څنګه وشوه چې په بغداد کښې مو عکاسی

زده کړه. ده وویل: زما د پاره یو خوش چانسی وه څکه د هغه هوټل په څنګ کښې چې ما درلود یو عکاس دوکان کاوه. زما ډېر تلاښ او شوق په اساس نوموړی

میرزا مسلم عکاس می لارښوونکی سو او په دوه میاشتو کی بو بل نصر الله ی په دی برخه کی مرسته راسره وکړه. په

هرصورت دا می د ځل د پاره چې می د یوه ملګری عکس اخیستی د هغه د فلم د لیدو څخه می تعجب وکړ څکه هلته هر شی سرچپه ؤ مخ ئې تک تور، سترګی ئې

سپینې او ورېښتان ئې هم سپین معلومیده خو دوهم وار می د عکس په لیدلو سره د ډېری خوښی احساس کاوه او وروسته د

زیات استعمال د پاره می ځلور سوه قطعې عکسونه وه یا عکاسی کړل ځو می کار زده کړ.

ښاغلی سید عکاس علاوه پر عراق

پاکستان هند، ایران او سعودی عربستان ته سفر کړی دی او په عربی ژبه پوره بلد دی.

په اردو، سندی او کردی ژبو هم خبری کولای شي.

ده پدې برخه کښې چې په څه توګه مو عکاسی کول وویل: د عادی نور او

ساده ډول کیمری څخه می کار اخیستی د عکسونو فلمونه د اوسنیو فلمو سره زیات توپیر درلودی هغه پوره یوه سیښه وه او یو مخ ئې مخصوص د عکاسی د پاره جوړ شوی ؤ.

وروسته ئې څو قطعې خلاصی کړی او د هغه وخت د فلمونو نمونې ئې راوښودلې او وئې ویل:

دغه فلمونه ۳۰ کاله د مخه بساب شول او په کندهار کې د برقي عکاسی تقریباً

۳۵ کاله کیږی چې د برقي نور څخه استفاده کوی.

سید عکاس چې کله څو خبری یو په بل پسې وکړې ی قوخې ئې

واخلی او سالنډي ئې کیږی ی دا ناروغی چې دې پرو کلونو راهیڅسی ورته پیښه شوې ده.

یوه عجیبه خاطره لری. په هرصورت د شپې اته نیمې بجې کیدونکی وی ددې د پاره چې زه د ده د تکلیف باعث و نه ګرزم

نو می رخصت ځینی واخیست او د سوالو پاته برخه می د بلی ورځی وعده ورا کړه.

د شنبې په ورځ د وعدې سره سم کور ته ورغلم تر پوښتنې او

ګلو بهڼی وروسته می بیا خپل پوښتنې شروع کړی ی نن ئې یو زیات

شمیر مستند تاریخی عکسونه ماته د کتلو د پاره راټول کړی وه ما د عکسونو د لیدلو په ترڅ کښې

پوښتنه ځینی وکړه چې آیا یوه عکاس مهارت په عکاسی کې څه دی؟

ده وویل: البته د کیمری

فوکس کول د وخت او ځای په مطابق او د فلم پر دازچې ښايي دا په خپله یو ټکی د سام غواړی

(۷مخ)

څو د فلم سایه او روښنایي کنترول کړي او هم و کولای سي چې د عکس اخیستو نکي د څېرې سره سم د پاور کړي.
سید محمد علاوه پر عکاسي د خرادۍ کار د (فیوس سازۍ) په نامه د اعلیحضرت امان الله خان په عصر کې زده کړی وه

او د هغه وخت په حربي فابریکه کې ئې کار کړی وه. د لاسي کارونو او بافت سره علاقه لري خپل د دغه کار نمونه چې یو دستکول ؤ او همدا اوس په لګیا ؤ ماته

راو ښود ل. په ورشتیاڅ پر ښایسته او په پوره ذوق سره او بدل شوی ؤ دا د یوه ساده ګروشنېل په واسطه چې هغه ئې هم د اعلیحضرت امان الله خان په وخت کښې جوړه کړې وه د ګېډۍ په تار او بدل شوی ؤ. ژمنۍ خولۍ او جاکټونه هم جوړولای سي.

دی وائي چې اوس زما د کور ټول مخارج د عکاسي د لارې پلاس راوړم او پدې کار کښې تر اوسه پوره موفق یم او هیله لرم چې د مرګ تر ساعته د چاو لاس ته و نه

ګورم، پخپله کار و کړم، و ئې ګټم او و ئې خورم. حتی د هغه ژوی ولاس ته اړ نسم چې زما پر شرین او وفادار ه ژوی دی.

ښاغلی سید محمد زما د یوې پوښتنې په جواب کښې وویل: ما تر اوسه ډېر شاګردان روزلي دي چې د هغو

څخه زما ور ور وراره ګان او پخپله ژوی می چې اوس په آریانا کې کار کوي. و تکړه عکاس دی او یو شاګرد

می هم هغه وخت چې د بغداد څخه افغانستان ته راغلم د ځانه سره راوستی.

ورسته می دا پوښتنه هم ځینې و کړه: ښاغلی تاسو چې د و نه وخت د لته زحمت ګاللی د خلکو او محیط فساد و نه

موږه پدې او د هغه وخت عکسونه مو په ډېر سختو شرائطو کې اخیستي دي، پداسي حال کې چې نه بل عکاس او نه پوره مواد موجود وه، آیا تر اوسه د یوې جایزې په لاس ته راوړه لو بریالي شوی یاست؟

– د شهرت غوښتونکی سړی نه یم عادت نلرم چې د خلکو په سترګو ننوژم او خود نمائي می خوښه نه ده نو نه می کومه جایزه اخیستي او نه ورپسې ګرځېدلی یم.

– آیا عکسونه مو هم په کوم نندارتون کې نه دي ایښي؟

– اصلاً مې تر اوسه ندي غوښتي دا کار و کړم.

– د هغو عکاسانو په لړ کې چې په کندهار کې عکاسي کوي کوم عکاس ستاسو په نظر ښه عکاس دی؟

– اشنائي نه‌لرم سره لرم نو ځکه قضاوت هم نسم کولای.

– د عکاسي د فن د پر مختګ د پاره څه نظر لرئ؟

– تر اوسه ئې پوره انکشاف کړی ندی او نور د خلکو

د تشویق په اثر او د بلې خوا د سامان مجهز کېدل او د موادو ښه جنسیت د عکاسي په کیفیت کې بدلون راولي او عکاسي د ګڼو زوندو مهمو ضرور یاتو څخه ده چې په کور

کې یوه د انه کیمره باید موجوده وي څو د ژوند خاطرات د تل د پاره ژوندي وساتي.

کېدای شي چې د غه د خلکو علاقه د عکاسانو د زیات تشویق موجب و ګرځي او هغوی په عکاسي کې نوي تحولاتو ته متوجه کړي.

د ښاغلي سید محمد مجلس ډېر خوږ ؤ او د هر سوال سره ئې متصل یوه خاطره در لودل نو زمې هم زړه ؤ چې د هغه د ژوندیه برخه کې څه ځینې و پوښتم خو چې ساعت ته

می و کتل د شپې ۹ بجې کېدونکې وې فکر می و کړ چې ښایې نور د هغوی د تکلیف باعث شم نو می تر لاندې پوښتنو ورسته خدای په اماني ور سره و کړل او د کور څخه ئې راووتلم.

– ښاغلي آیا د ژوند څخه کومه خاطره لرئ؟

– خوشحاله یم چې په ژوند کې مې یو هنر د ځان د پاره غوره کړی یدی یو وخت کله چې په بغداد کې وم

خلکو و شاه نجف ته د دیني علومو د زده کړې د پاره مخه کړې وه ما هم وغوښتل چې دا کار و کړم مګر ومې لیدل چې د هغې مدرسې فارغان بیله د ی څخه چر په یوه ځای کې طالبې و کي او یا د یوې ګولۍ ډوډۍ

د پاره د نورو لاس ته اړ وي بل څه نه وه البته پاتې دي نه وي چه علم هم زده کیږي.

نو ځکه مې په عکاسي لاس پورې کړ اوس په دې

چې د یوه هنر څښتن یم د خوښۍ ځای دی.

ښاغلی: ممکنه ده په یاد موو ي د هغو عکسو نو په لړ کې چه د عکاسي د لمړ یو وختو څخه تر اوسه مو عکاسي کړې یدي کومې خاطري و لرئ؟

پاتې په ۳٤ مخ کې

د الحاج یو آل په قلم:

# د مور د ستر مقام درنښت

دغه عالی موجود چې د مور په نامه یادیږی په ټوله ... ي کې او د هر چا په نزد قدر او منزلت لری او په تیره بیا ... سلام د ستر دین د لارښوونو له مخه د مور مقام ډیر هسک ... عالی دی او په دعاکی تل د مور نوم تر پلار د مخه ... دیږی .

د مور په پاکه غیږ کې پیغمبران، نوابغ، مصلحین ... هان او ستر شخصیتونه روزل شوی او همدوی دی ... ي ود و کوته دژبې بدو دوخت څخه بیا څوانی ته د رسیدو ... وخته پورې په روزنه ور کوی او هم ئې بدنی او معنوی ... لنه کوی او د خپل ژوند زیات وخت د اولاد په صمیمانه ... دمت او وده تیروی .

لکه څرنګه چې مور پر اولاد ډیره مهربانه او دهغو غم ... مرګه بالی او په جزوی درد او مصیبت ئې دواداره نه وی ... دغه رنګه پر خپل اولاد زیات حقوق لری او ددغو حقوقو ... دا ینه او دکمزوری په او ال تیا پروخت د منډولاس نیول ... هرډول مرسته د مور په هکله د اولاد فراض ي ... لاصوی او هر انسان د مور سره د نیکی کولو او د هغی ... د رنښت او ګرانولو له کبله د دنیا او آخرت ستر ثواب او ... وړ مقام ګټلی شی .

زموږ په هیواد کې د میر منو ټولنی د ریاست په ... پشنهاد او د صالحه مقاماتو په منظوری په کال کې ... وه ورځ د مور په نامه په خاصو مراسمو سره په ... مانداره توګه تجلیل کیږی او هر کال دغه ورځ ... افغان ملت د معنوی مور علیاحضرتی معظمی ملکی په ... پیغام سره پرانستل شوی او په کابل کی ممتازو مندو ته ... مایزی ور کول کیږی .

داچه هر کال د جوزا ۲٤ ورځ په هیواد ... کې د مور د په نامه په خاصه توګه ... مانځل کیږی او په دغو مراسمو کې چه د وبناوو په ... ګډون سپورتی او نوری ننداری اجرا کیږی او مندی

ګډون پکښې کوی دا کارمندی نوری هم په خپلو وظیفو کې زیاتی فداکاری ته تشویق کې ی او د دغه ستر اقدام څخه د هیواد په هر ګوټ کې د میرمنو

د طبقی له خوا ښه هرکلی شوی دی .

د میرمنو د طبقی تعلیمیافته کو لوا و هغو ته د عصری روزنی او پوهنی څوو لو څخه یو ستر مقصد

دادی چه هغوی و کولای شی خپل زامن او لو ڼی د هیواد و الو خدمت د پاره وروزي او په ښه توګه د دغه ستر کار تر عهدی ووزی .

موږ ټول د مور د ستر مقام درنښت ته قایل یو او باور لرو چه زموږ د غه حق بینی او د مندو په نسبت دغه عالی احساس افغانی مندی نوری هم په خپلو وظیفو کې ستری فداکاری ته وادار کې ی او هغوی به و روسته تردې هم خپل زامن او لو ڼی د اسلامی دین او افغانیت په چوکاټ کی ښه وروزی څو چه خپلی ټولنی ته د لوی خدمتونو او فداکاریو مصدر وګرزی .

---

# د پوهانو وینا وی

وینه د ټولنی تاریخ سنګارو ی او آزادی یو تثبیتوی .

(افغان)

لکه څرنګه چې د مځکی د وضعی حرکت مخه نشو نیولای دغه رنګه نشو کولای چې د ټولنی د پرمختګ مخه ونیسو .

(اګوسټ کو ن)

عالی انسان خپله نیکبختی د نورو په سعادت کی لټوی .

(ګویټه)

دزړورزړه دپاره هیڅ شی ناممکن نه دی .

(ژاکس ګرای)

# د کندهار اوسنی عمرانی نهضت
# په بیلو بیلو دورو کی زموږ مهمی ودانی

د کندهار اوسنی ښار چی د اعلیحضرت لوی احمدشاه بابا له خوا څه د پاسه دوه سوه کاله د مخه جوړ شوی او د مؤرخینو په قول په ۱۱۷۴ هجری کال د دغه ستر پاچا د سلطنت په څوارلسم کال د خښتو لویه کلا پری د اگرځول شوی او څنگ ته ئی لوی خندق ؤ او د ښار څلورو لوریو ته بازارونو لکه شاه بازار، هرات بازار،



د احمدشاه بابا کلا

شکارپور بازار او کابل بازار څخه عبارت دی اوس د احمدشاهی کندهار په نامه یادیږی تر لوی احمدشاه بابا د مخه زوړ ښار چی د سر پوزی ا د خ ته پروت دی د پخوانیو پاچاهانو مرکز ؤ او په تیره بیا د هوتکیانو په دوره کی هغه ځای ډیر شان و شوکت درلود او اوسنی ښار په هغه وخت کی یو پراخ دښت ؤ، په ځینو برخو کی ئی کاریزونه درلودل او د کرنی مځکی وی او هر کله چی د ارغنداو د لوی رود څخه ویالی وکښل سو نو د کرنی وړ وگرځید، باغونه او پالیزونه پکښی وشول او غلی او دانی هم پکښی کیږی.

د کندهار د اوسنی ښار بنسټ د لوی احمدشاه بابا په لاس ایښودل شوی او زموږ د دغه ستر پاچا د ولس د مشرانو او سپین ږیرو سره تر مشوری وروسته

په دغه ځای کی د خپل ښار او د افغانستان د هغه وخت د پای تخت عمرانی نهضت شروع کړ او دا دی اوس چی د هغه نیټی څخه دوه سوه نه زیات کلونه تیر شوی دی بیا هم احمد شاهی کندهار ژوندی او خپل ښاری مرکزیت ئی د لاسه نه دی ورکړی.

اوس په کندهار کښی د لوی احمد شاه بابا څخه ده دو خت

شکلی گنبده، شاه جامع (د احمد شاه بابا اوسنی جامع) چی ده له خوا ودانه شوی او لمونځ به ئی پکښی کاوه او لکه څرنگه چی د دغه ستر پښتون کورد سدوزو په کورنی ؤ او د سپین ږیرو په قول، اوس ئی هم د هستوگنی د ځای یوه برخه شته او په پخوانی حال پاته ده



د کندهار پخوانی ښار



**دلوی امپراطور احمدشاه بابا د کور یوه څنډه**

شاه جامع د غی محلی ته نژدی ده، د میر هزار جامع د احمدشاهی ښار په دوهمه ناحیه کی د میر هزارخان الکوزی له خوا د لوی احمدشاه بابا په زمانه کی ودانه شوی او اوس هم شته، د مددخان جامع د ښار په دریمه ناحیه کی د اعلیحضرت احمدشاه بابا په وخت کی مددخان

اسحقزی ودانه کړې او اوس هم شته او زړه جامع د ښار په څلورمه ناحیه کی وزیرشاه ولی خان بامیزي په همدغه عصر کی ودانه کړې او اوس هم شته .

د احمدشاه بابا گنبده دده له خوا د خرقی شریفی دپاره جوړه شوی او دده مقصد او چی لاندی یی دده مقبره او سر بیره به خرقه شریفه وی خو دده تر مړینی وروسته خرقی شریفی ته او سنی ځای جوړ او پکښی کښېښودل شوه .

معماران راوستل او هغوی بیا ته ولاړل او دلی پاته شول نو په غالب گمان چی د احمدشاهی عصر د معماری سبک د هند او افغان د معماری د گډون نمونه ده .

تر احمدشاه بابا وروسته د هیواد پای تخت د تیمورشاه له خوا کابل ته نقل شو نو بیا ته د خرقی شریفی له ودانی

څخه کوم مهم ځای او ودانی په کندهار کی نه دي جوړې شوی .

د سراج الملته والدین امیر حبیب الله خان په عصر کی د هغه وخت د نایب الحکومه سردار محمد عثمان خان له خوا د احمدشاهی ښار د خټو کلاچی او س د منځه تللی او څینی

لږ برخی ئی پاته دی ترمیم او بیرته د نوی سره جوړې شوې، د مزلباغ ښکلی او عصری ودانی منځ ته راغله چی اوس هم شته، او سنی ارگ او د دار الحکومگی

لوړه ودانی مرحوم سردار محمد عثمان خان د کندهار د معمارانو په لاس جوړه کړه او د خرقی شریفی ترمخ ودانی چی تیر کال ړنگی شوی او د پیر

وخت مستوفیت او اوس ته ئی د ښځو روغتون او هم دده د نایب الحکومه د لاس نخښه وه .

د کندهار چارسوچې سرئی د غلام فاروق خان عثمان د نایب الحکومه

کی په وخت کی واخستل شو د احمدشاه بابا په عصر کی جوړ شوی و . لکه څرنگه چی

احمدشاه بابا د هند تر فتحی وروسته کندهار ته د ځان سره د هند څخه یوه ټوټه له



د کندهار په نوی ښار کی د مستوفیت، عدلی محکمو او نورو ادارو ودانی

دغه مرحوم د کوکران ودانۍ نوی چارسو او د حاجي جمال خان نیکه د زیارت ودانۍ هم جوړې کړې دي تر سردار محمد عثمان خان وروسته زموږ د ګران او ترقي غوښتونکي ټولواك په عصر کې مرحوم محمد ګل مهمند د کندهار د هغه وخت د تنظیمیه رئیس له خوا د میرویس نیکه ګنبده، د سردو میلمه تون او د میوند څلی جوړ شو چې اوس هم شته.

باید وویل شي چې مرحوم مهمند په کندهار کې ادبي نهضت او افکارو ته هم وده ورکړه او کندهاریان ئې په خپل منځ کې ژبات سره نژدې کړل او پوشمیر ځوانان ئې وروزل.

هر کله چې روڼ د کندهار د هغه وخت نائب الحکومه سردار محمد داؤد خان ته ور سیدنو هغه د کندهار د اوسني نوي ښار بنسټ کښېښود، د نایب الحکومه د پاره ئې کور جوړ کړ چې اوس هم د وخت والیان پکښې اوسي او کندهاریان ئې تر او سه د سردار د کوټۍ په نامه یادوي د احمدشاه بابا او میرویس نیکه لیسې ئې جوړې کړې د سرده ګلخانه ئې منځ ته راوړه او تر سرده پورې ئې د ښار څخه د پاتاو پر غاړه سړك جوړ کړ.

باید اخیر هم یاده کړو چې ښاغلي سردار محمد داؤد خان د کندهار پوهنې ته زیاته پراختیا ورکړه خو د بده مرغه تر ده وروسته ئې ښوونځي بیرته لغوه شوي.

سردار محمد یونس خان نایب الحکومه سره جامع د احمدشاه بابا لیسې ته نژدې او د شهیدانو څلی د هرات بازار په چوك کې جوړ کړل.



په هرات دروازه کې د شهیدانو څلی

مرحوم عبدالغني خان ګردیزي نایب الحکومه په نوي ښار کې د ښاغلي سردار محمد داؤد خان نقشه بشپړه او او سني ودانۍ ئې جوړې کړې، د باغ پل ودانۍ، د شاه ولي کوټ د ولسوالۍ د اوسني مرکز ودانۍ، د شاه مقصود د پاد ولسوالۍ هوټل د باباولي صاحب هوټل د مرستون واټ ودانۍ، په کلات، تیر ین کوټ او نوروزیاترو ولسوالیو کې ئې ودانۍ جوړې کړې، د دامان د علاقه دارۍ ودانۍ د ماموریتو ځینې کورونه او داسې نور د مرحوم ګردیزي د فعالیت نتیجه ده.

د کندهار د اوسني عصر د مهمو ودانیو څخه یو هم د دغه ولایت د هوائي بین المللي میدان ترمینل او ودانۍ دي چې په خاصه او عصري تو ګه جوړې شوي دي.

د میوې د شرکت ودانۍ هم د ګردیزي د نایب الحکومه ګۍ د دورې تعمیرونه دي او د عید ګاه په واټ، منزلباغ او داسې نورو برخو کې هم داډول زیاتې ښکلې ودانۍ شته چې د مرحوم ګردیزي په وخت کې ئې بنسټ ایښودل شوی او د کندهار د ښار ښکلا ئې څرګنده کړې ده.

زموږ په عصري ودانیو کې د افغانستان بانک، میوند رستوران او کندهار سینما دودانیو یادول هم بې ځایه نه دي. باته په ۲۳



د نوي ښار یوه عصري ودانۍ

د فیض محمد په قلم

# مرحوم مولوي صالح محمد

د کندهار د پښتو لیکوالو او تکړه شاعرانو څخه وهم مولوي صالح محمد د مرحوم فیض محمد زوی د حاجي محمد اکبر لمسی او په خټه هوتک دی چې په ۱۳۰۰ هـ ق. کال یې د نړۍ پر مخ سترګې رڼې کړې او په ۱۳۳۹ هـ ش. کال یې له جهانه سترګې پټې کړې.

دی یو متدین او پرهیزګار عالم و. په اجتماعي چارو کښې د ښو احساساتو خاوند او د پوهنې د خپرولو په لار ښوونکی و. پلار او نیکه ګان یې ټول په تجارت لګیا وه دا چې دی ولې د خپلې کورنۍ او خپل پلار او نیکه د تجارت او سوداګرۍ پر لار نشو روان لکه علمي پلوته ئې غوره کړه دا ځکه چې دده مور یوې مور استرې علمي کورنۍ ته منسوبه وه او دده د مور د خوا نیکه ګان د ګران هیواد د منلو او مشهورو علماؤ څخه وه.

نوموړی مرحوم په ۱۳۰۷ ق.هـ. کال د کندهار په ښار کښې د خپلو ماماخیلو کره د پامیزو په کوڅه کښې وزیږید او له همدغې ورځې څخه ئې نشو و نما او روحي او رسمي تربیه په هغه محیط کې شوې ده.

ورو سته د حبیبیې مدرسې (اوسنۍ لیسې) ته داخل شو او ورو سته تر ابتدائي تعلیم د فامیلي مشکلاتو له امله ئې تحصیل ته دوام ورنکړای شو او د حبیبیې په لیسه کې د معلم په حیث مقرر شو. مرحوم علاوه د نورو مضامینو پر درس د پښتو درس هم ورکاوه او په همدغه اساس دی د هیواد په لومړۍ عالي لیسه کښې د پښتو ژبې اولین استاد او پوهاند بلل کیږي.

نوموړی مرحوم ددغې وظیفې په ایجاب مجبور شو چې د هغو ټولګیو د پاره چې پښتو درسونه ئې پکښې درلودل یو ابتدائي ګرامر د پښتو د صرف و نحو (لومړی کتاب) په نامه تهیه او تالیف کړي. چې له همدغه کبله دی د خپل هیواد تقریباً د (رنسانس) په دوره کښې د پښتو لومړی مؤلف دی.

مرحوم مولوي صاحب تقریباً شپږ کاله د ښوونکي وظیفه اجرا کړه وروسته چې د کابل په ښار کې ابتدائي مکتبونه تأسیس شول دغه مرحوم د ښار د څلورو ابتدائي مکتبونو د مدیر، مشهور فاضل مرحوم مولوي عبدالرب د معاون په حیث د (نائب مدیر) په نامه مقرر شو.

نوموړي مرحوم د خپلې مورنۍ ژبې سره مینه درلوده او د همدغې مینې په اثر ئې د ځلمیتوب له ابتدا څخه په دې لار کښې قلم خوځاوه، اجتماعي-اخلاقي او بعضاً اصلاحي افکار و منظومې ئې د هغه وخت یوازنۍ جریدې «سراج الاخبار» خپرولې. مولوي صاحب د ځلمیتوب په دوره کښې د ځواني جذبات او تاوده احساسات کله د پښتو قصائدو او غزلیاتو او کله د منثورو پارچو په لیکنه ښکاره کول. کوم چې به د نشر وړ وه هغه به په «سراج الاخبار» کښې خپریدل او چې د عمومي خپرونې به نه وه هغه به ئې د خپلو ملګرو او دوستانو په مجلس کښې تر لوستلو ورو سته د ځانه سره ساتل یوه رساله چې د اعلیحضرت امیر حبیب الله خان شهید په امر د «اطاعت اولوالامر» په نامه په هغه وخت کښې د مرحوم مولوي عبدالرب لخوا په دري لیکل شوې وه مولوي صالح محمد د فاضل مؤلف په اشاره پښتو ترجمه او ورو سته ئې پښتو هم طبع او خپره شوه. لنډه دا چې هغه مرحوم په سراجي عصر کښې موږ لومړی سړی وینو چې د پښتو لیکلو سره ئې د منظومو قصائدو ترجمې او تألیف له لارې د پښتو ژبې سره مینه او علاقه درلوده او په دې خوا کښې ئې قلم خوځاوه.

ورو سته تر هغه په اماني عصر کښې نوموړی مرحوم په ۱۲۹۹ کال د کابل څخه د کندهار د معارف مدیر مقرر شو او په احمدشاهي ښار کښې د لومړي ښوونځي تاسیس او افتتاح دده د مدیریت په وخت کښې وشوه همدغسې په دغه مرکز کښې د لومړي اخبار «طلوع افغان» چلول او مدیریت هم ورو سپارل شو خو ورو سته

دیوځوګڼوتردا ایستلودي یوازې دمعارف ادارې ته متوجه سو او داخبار چلولوچارې ئې ښاغلي فاضل عبدالعزیزخان ته چې په باباجان مسمی ؤ ورپه غاړه کړې.

ښاغلی صالح محمدخان دکندهاردمعارف دمدیریت په دوره کښې دده دحاله سره برابرخدمتونه وکړه اودوخت آمرانو اوصلاحیت لرونکو مقاماتو بهځوښې هم څېښې کوله.

نوموړی مرحوم دپښتو دنظم اونثر سره ډیره مینه درلوده.

دسقاوي اغتشاش پهوخت کښې مرحوم صالح محمد ګوښهنشین سواو کوم وخت چې سقاوي اغتشاش ناکام

سو ذکرسوی مرحوم ته دمدیریت معارف وظیفه وروسپارل شوه دغه دمدیریت دوره تقریباً شپږ کاله دوام وکړ او پهدغهوخت کښې دکندهاردمعارف اپاره

ئې ښهخدمتونه وکړه او په عین حال کښې ئې ترپخوا ډېر تماس دپښتوسره پیدا کی. پهدغهوخت کښې محمدګل خان مومند دکندهار رئیس تنظیمه ؤ او پښتو او پښتنوالي ته ئې ډیرخدمتونه وکړل دپښتو انجمن ئې جوړ کی او طلوع افغان ئې په پښتو کی.

ښاغلي مومند ادبي مجلسونه، مشاعرې او جرګې په هر(۱۵)ورځو یاهمیاشت کښې جوړولی. کوم اشعار او منظومې چې بهترتیبسوې پهدغو مجلسو کښې بهویل

کیدې نوموړی مرحوم به په دغه مجلسو کښې هم حاضرؤ او منظومې به ئې هم خوندورې وې چې دهغه اثار بهدپښتو انجمن به «پښتو» مجله کښې خپربدل.

دمولوي صاحب دنظم نمونه

# دبلبل ژړا

بو سحر زماتر غوږ سوه له بلبله
په قفس کې ئې ژړل دائې ویله
چې بندي شوم دصیاد له مخته دله
ولې نه پوښتي څوک حال زما وله بله
ولې تښته بې فغانه کارو بار زما
ولې حبس ابدي راغی ه په وارزما
نه محرم چې دزړه حال ورته بیان کړم
نه مې وس چې خبرداره بلبلان کړم

با بیان ورته دګل او دریحان کړم
نه ملګرې چې چمن ته ئې روان کړم
خپل ډک زړه دارمانوورته خالي کړم
ټول مرغان دچمنو په ځان حالي کړم

چاته وژاړم پرچاباندې فریاد کړم
چاته خاورې پرخپل سر باندې باد باد کړم
چاته و ګوډم په څه شي زړه ګي ښاد کړم
دصیاد له لاسه چاته عرض وداد کړم

څه داوشوه چې دتورقفس بندي شوم
نه خلاصیږم په دابند کې ابدي شوم

ولې زه لـه خپلهسیلـه راجلاشـوم
ولـې زه دخپل وطـنه راجلا شوم

ولي زه پـه ویراختهپه واو یـلاشـوم
کورو کلي مې سو پاته خوارتنهاشوم

کم ظالم کې مه بندي خداي دي بندي کړي
خداي دي ماغوندې اخته په جدائي کړي

اوس بهزه لکه هانور په هوا تلمه
په هوس دآزادۍ بهناز بدمه

پرغنچو بـه دګـلانـو هـسـید مـه
روغ پهروغ به غوړېدمه لو بیدمه

چابندي کړم خدایه تې په ځان اخته کړې
پهقفس ئې دزندان ځګر سوخته کړي

اوس به ګرزیدم آزاد په چمنو کې
الوتم به په صحرا او په باغو کې
مست په ګرزېدم خوشحال پهشکوفو کې
ولي اوس پسم پـه غمو په اندېښـنو کـې

چې بندي دي دقفس کې مه صیاده
خدای دي ما غوندې بندکهای آزاده

الغرض چې ده و هـلی دا نـارې
دقـفـس لـه لاسـه و، په غلبلـې

چې ناګه دچمن باد راغی د کښې
چې پرونښت دائـې وواته لهخـولـې

مګرداباد دچـمن له خوا راغـلی
چـې ئـې زماصبر روآرام راځـهوړی

اوس بیا گل او پسرلی هغه بهار دی
د نرگس او شکوفو گرم بازار دی
د طوطیانو په گلشن کې چغهار دی
په چمن کې د بلبلو چغهار دی

پر گلانو الوته کا په خندا
زه بندي یم د قفس او په ژړا

ژړه مې چاک دی سره چوي دارمانه
خدایه ژر مې خلاص وې له دې زندانه

نور مې مه پرېږدې په دې ځای کې سبحانه
بیا مې ورسوې ژر تر خپل بوستانه

که دې زه یمه قفس ته پیدا کړې
بیا وزر دې ولې ماته دې را کړې

څو تر څو بایم په دې جور و ستم کې
څو تر څو به یم په آه و په الم کې

څو تر څو به په ژړا یم او په غم کې
څو تر څو به یم دا رنگه په ماتم کې

چې امید مې د خلاصي نشته هیڅ کله
نو بهتر دی مرگ تر دې ژوندیو په سلمه
بیا نو چپ سو یو ساعت په تأمل شو
زما خیال دا سو چې د غم په تحمل شو
بیا ئې نارې کړې همراز د سور گل شو
ویلې: آه چې د صیاد لا تغافل شو

ځان که مې چې د ذلته نجات مومې
په گوټه کې د عدم به حیات مومې

یو ساعت متفکر و حیران پاته
نې شکوه شکایت کاوه و چا ته

چې بیا باد د چمن راغی دده خواته
آه ئې وکیښ عرض ئې وکې خپل مولاته .

لکه زه هسې بندي شې ای صیاده
د وطن په جدائي کې شې نامراده

زه چې فخر د چمن زیب د بوستان وم
نغمه خوان د خپلې ځالې او اشیان وم

د باغو د ښو باغچو روح روان وم
د سرو گلو پر ښاخو به ثنا خوان وم

د فولادو په پنجه کې دې بندي کړم
د هر کس و د ناکس دې ریشخندي کړم

زه به تل د باغ پر سر ښه په هوا وم
ښاخ پر ښاخ به بیا په نازو په ادا وم

د گلانو پر سرو به په خندا وم
په ځالې کې به وم ناست یا پر صحرا وم

نه بندي وم د قفس نه مې هیڅ غم ؤ
نه مې اوښکې بهېدې نه مې ماتم ؤ

چې سحر به زه له ځالې په هوا شوم
په گلشن کې به د عشق نغمه سرا شوم

چې له ښاخه به پر گل باندې راتا شوم
یاسمن و یاسمین ته به گویا شوم

آیا څوک لري دا عیش و عشرت نن زما
چه ندیم و گل خانه ده په چمن زما

که څه نه دی ښه وماته په داشان مرگ
ولې ځوان یم او د ځوانۍ وي دارمان مرگ

خو د ژوند د پاره ښه دی ناگهان مرگ
په هزار ځله بهتر دی تر زندان مرگ

چه دا هر سهار خپل مرگ په قفس وینم
ولې نه مرم چې به بیا زه قفس وینم

په حسرت او په افسوس یې داو یله
وگلشن ته یې کتل بیا یې ژړله

د قفس و دروازې ته یې ځغستله
لاړې نه وه و زرو نې سر یو له

په هوا شو سر ئې و نښت له قفسه
وینې توې شوې سوږ پوږ و لوید له هوسه

سر تر پایه په سرو وینو کې غرقاب ؤ
ځان بایللی، ژړه زخمي، حال ئې خراب ؤ

بیا بېهوښه یا پر هوښ به اضطراب ؤ
چې پر هوښ به سو گویا نه په دا باب ؤ

سر مې بایلو په هوا د آزادۍ
شکر شکر شوم فدا د آزادۍ

# داسیایي او افریقایي ښځو په باب دیوې فرانسوي لیکوالې انتقاد

تهیه کوونکې ملاله اڅکزۍ



**یوه فرانسوي لیکواله میرمن بنوات کرولت په آسیا او افریقا کې دښځو پر وضع باندې انتقاد کوي او داسې لیکي:**

چاپي چادرۍ او د وي بند زما او داسې نورو اروپائي او امریکائي ښځو لپاره کوم مفهوم و نه لري مګر په دې پراخه نړۍ کې داسې ښځې شته چې په افریقا او آسیا کې ژوند کوي خپل ټول عمر تردې ټوکره لاندې تیروي.

دغو ښځو په چاپي د اپایستې اسمان په ستر ګو نه وي لیدلی او د چمنونو او پارکونو د پاکې هوا څخه په استفاده نه سي کولای.

په دې هیوادونو کې نجونې ترلس کلنۍ پورې لکه خپل ورونه په میدانونو کې بازۍ کوي. آزادانه یوې خوا او بلې خواته ځي نا بوبره د پسرلي په یوه ښایسته سهار کې او یادمنۍ په غمناکه صحنه کې د بلوغ او ځوانۍ په رسیدلو سره د نجلۍ ژوند بل ډول پیدا کیږي دوی په کورونو کې بندیانې کیږي او په شاو خوائي د محرومیت لوړ دیوالونه پورته کوي. ځینې هغه نجونې چې په ښوونځیو کې په تحصیل بوختې دي د هغو د تحصیل مخنیوی کوي.

د دوی لپاره څو متره ټوکر اخلي او ورته چادرۍ جوړوي. تر څو چې د باندې و تلو په وخت کې ئې صورت او اندام په پټ کړي، پسله دې څخه نو بیا انجونې د بازیو او تفریح وسیله ګرځي، چې نورو ته خوند و بخښي او خپله د ژوند څخه هیڅ ډول خوند وانخلي، او تل په دې محکومې وي چې د کور په زندان کې به ناستې وي تر څه وخت ورو سته بیله دې چې دوي و پوهیږي و نا آشنا خلکو ته ئې ور واده کوي بیا نو دوی صرف د سړي جوړو او فابریکې او د تفریح وسیلې ګرځي چې مکلفه وي موجودات منځ ته راوړي او د هغو پالنه وکړي، د کور ټول کارونه په یوازې سر پای ته ورسوي بیله دې چې د کور او خارجي محیط څخه خبري وي، خپل ژوند ته دوام ورکوي. البته داسې ښځې هم شته چې چادرۍ ئې ایسته کړې او په اجتماع کې داخلې وي او د سړیانو سره څنګ پر څنګ د اجتماعي او اقتصادي وظایفو د سرته رسولو د پاره ګامونه اخلي.

دې ښځو چې چادرۍ له منځه وړي د هغې شمیر ئې چندانې زیات نه دی خو بیا هم د دوی مبارزه د ستاینلو وړده.

د ښځو ژوند په نړۍ کې اوس هم د سختیو سره مخامخ دی ورځ په ورځ ئې ژوند نور هم پسې خرابیږي. او تر ډیرو سختو شرایطو لاندې ژوند کوي او هیڅ په دې فکر کې نه دي چې خپل ضعیف وجود په یوه قوي وجود لکه د یوه سړي بدل کړي. دې ښځو پر هغه قبوله کړې ده چې په اجتماعي، او سیاسي مسایلو کې د دوی ګډون ډیر مشکل کار دی او یوه ښځه هیڅکله د دې موضوعاتو په برخه کې فکر نه کوي.

زموږ میندې هر وخت خپلې لوڼې د دغه عقیدې ته چې یوه ښځه هیڅکله د یوه نارینه په څیر مسایل نسي درک کولای رهنمائي کوي. اما دا یوه لویه او جبران ناپذیره خساره ده چې ښځې د هغه مرتکبې کیږي او زیاتره ښځې په څلوېښت کلنۍ کې و دغه موضوع ته متوجه کیږي چې ژوندئې عبث تیر کړی دی.

البته د دې خبرو مفهوم دا نه دی چې ښځې دې کور پریږدي او په ساعت تیري او عیاشۍ دې ژوند تیروي. مقصد د لته دا دی چې هر څوک په هر موقعیت کې باید د یوه کار پر کولو قادر وي. د کور په کارونو پوهیږي باید په اجتماعي او د کور د باندې کارونو باندې هم پوه شي. تر څو چې د بریالیتوب چانس ئې په ژوند کې زیات شي.

نو یوه ښځه باید واقعاً ښځه وي نو افکار ئې باید زنانه کارونو کولو ته منحصر وي.

# دمور مهربانی

وائي: د حضرت سلیمان (ع) په وخت کې یوه ورځ دوې ښځې د ده و حضور ته ورغلې او پر یوه ماشوم ئې سره دعوا وه. د هرې ښځې څخه هرې یوې ماشوم کوچنی د ځان باله.

دا دوې ښځې داسې یو او بل ته ورته وې چې هیڅ فرق ئې نه سره کیدی او هیڅ چا نه سوای و بلای چې دا ماشوم

به دچا وي، د دواړو دلایل هم ډیر قوي او معقول وه. حضرت سلیمان (ع) چې هر څه فکر وکی نه ور معلومیده چې څه حکم پر صادر کی په آخر کی ئې توره

را وکیښله او دواړو ښځو ته ئې خطاب وکی: اوس چې تاسې دواړې داسې ټینګې یاست مجبوره یم چې ماشوم کوچنی

په نیمې کړم نیم به یوې ته ورکوم او نیم به بلې ته.

یوې ښځې په دې فیصله قناعت وکی او وی و بل «ډیر ښه دی». مګر هغه بله

ښځه د ډیرې و ار خطا ئې څخه د حضرت سلیمان (ع) په پښو کی ورولویدله او په ژړا او عاجزی سره ئې ورته وویل:

حضرتا! تر خپل حق تیره یم دا ماشوم ودې تـه ور کړه خو سالم اوژوندی دی باته وی.

حضرت سلیمان (ع) چې دا خبره واوریدله دستی ئې حکم صادر کی دا ماشوم د دې ښځې مال دی د هغې بلې ښځې ادعا باطـله ده.

کوچنی ئې پر مخ مچ کی او مور ته ئې تسلیم کی او وئې و یل: د مور مهربانی د لمر په شان روښانه او معلومه ده، پس له هغه ئې هغه بله د ناحقی ادعا کوونکی په جزا ورسوله.

# یو ډول پښتنی خواړه

ګرانو میرمنو! غواړم پدې برخه کی تاسو ته یو ډول پښتنی خواړه معرفی کړم، دا خواړه عبارت د شکنی څخه دی چې د ډیری پخوا زمانی راهیسی په پښتنو کی باب ده او د ضرورت په وخت کی د هغه څخه استفاده کوی.

د شکنی ضروری مواد:

غوړی، پیاز، اوړه، هګی، مرچ او مساله.

د پخلی طریقه.

لومړی غوړی سره کړی او میده کړی پیاز ورواچوی چې سره



میرمن ملاله اڅکزۍ

شی ورو سته تقریباً دوې دقیقې ورلی خوری کاچوغی اوړه پر اضافه کړی. کوښښ وکړی چې اوړه ونه سوځل شی. اوس نو د خوړلو

په اندازه او به ورواچوی چې جوش شی نو بیا وه دا نه هګی په جوش کی ور واچوی مالګه مرچ او مساله د ضرورت پر اندازه پر علاوه کړی دې ته متوجه اوسی ایا ومو یی چې هګی ډیری ونه ایشول شی ځکه چې سختیږی.

او س نو چې دا خواړه مو پاخه کړه د ښوروا په کاسه کی ډوډی میده کړی او پخه شوی شکنه پر واچوی، د ستر خوان ته ئې راوړی او نوش جان ئې کړی.

# د نتکوانا توتکی او مقولی

لومړی که چې ناوې د زوم کره راولی نو ئې نغری ته تیره کی بیائې دوې یا څو ځلې پر او بورڅی ئې ورته او د ګوریه

ځلو ر و کنجانو کی ټوی کړی، تر څو چې ددې وجود په دې کور کی ټینګه شی او د خسر نغری په دی وساتل شی.

❀❀❀

ناوې به پر تخت د زوم تر مخ نه کښینوی ځکه د زوم ستاره پر لوړیږی.

❀❀❀

کله چې مو ماشوم ناروغه شی نو بیوه توده سوی او سپنه په یوه لوښی کی چې او به پکښې وی د کوچنی پر سر سره کړی، او به ئې

پر دیوال و پاشی هر شکل چې پر دیوال جوړ شی پر ماشوم هغه اثر ناست دی

❀❀❀

کله چې مو د ماشوم خوله خوږه شی نو اوږه داوړه و مرغهانی جوړه کړی او په یوه لرګي ئې و پیپا سست. هر څونه چې مرغهانی مخ پر و چیدو سی د کوچنی خوله و رسره جوړه یږی.

د کوچنی ځانګو خالی مه ځنګوی ځکه بیا خالی کیږی.

ماشوم که چیری ډیر ناجوړه وی

نو د توتکی ځالی پر ټینګی او او به ئې کوچنی ته ورکړی شفا پیدا کوی.

❀❀❀

د کوچنی چې سبق نه زده کیږی نو د توتکی په وزر کی او به ورکړی. کوچنی چې خبری نه زده کیږی نو د هندوانو ډوډی ورکړی.

# ادبي گوټه

تهیه کوونکی: «طالب»

پوهنوال (رشاد):

## د زمریو ژوند

چې پر کوټ د (سیرنگاپټم) ئې وروځه
پرنگی، نظام، مرېټې، واړه و شبخون
وزیرانو وې سر تیرټیپو سلطانه!
که پهٔ وینودی ډاگونه کړل گلگون

که دی ژغوره د (پرنگی) په ماتوشین کړې
که دی پوخ کاد (نظام) پهٔ غم لیمون
که دی کړی (مرېټې) پهٔ ژړا ستغی
دامید ژغی دی نهشو را زرغون

پر کـــــلا راو ختل غلیم فوځـــــونه
بسته پرېږه دهٔ دثبات هسوره جنون
لیږ رخپله څوانی رحم بویه بشاغلې
لې دفوځ دناوکیو پر کـــوټې تون

سلطان ووې بې بری نه را ستنیږی
میړنی چې یو وار ووهی زنگون
چې مهار دلیلا پرېږدی ورقیب ته
حرامیږی پر هغه نوم د مجنون

مه پښخیږه زموږ په خاوره کې هانگـی
چې په هر پـرز کندن کـادا مضمون
چارشه سل کـالـه حیات دسور لنډیو
دزمـریـو تـریـــوه شیبه ژونـــدون

> **او مه مرغلره**
> لمحه پخه په بستر کې داویده وه
> مرغلره وه صدف کې، لا اومه وه
> ماچې لاس ور وی، او به سوه له حیانه
> په تن باندی دشبنم په شان خوله وه
> ع-ک

## دیاقوتو جام

دائې حجاب دمخه ایسته کې که لمر دراوخوت
که پهٔ اسمان کې پاس دڅود لسم قمر دراوخوت

دالونل سوی عطریات دي او که زلفی دیار
که دختنه څه کاروان دمشک، عنبر را وخوت
دا پهٔ مـا کې سپین غاښونه سوه ښکاره دنگار
که دیاقوتو پر جام ستوری دسحر راوخوت

دائې دستر گو پهٔ کتو کړې مهٔ قرار د صحرا
که شاو خوا دتور و زلفو بیا لښکر را وخوت
دائی د مهرمږغ پر ما کې دعشاقو طبیب
کامې دحجر دلمبو څه پوخ څگر راوخوت

دادوصال وعده نژدی سوه زما (صالح) ودیار
که مسیحا درنځور ژغوره مې پر بستر راوخوت

صالح محمد (صالح)

مولینا محمد شریف (حبیبی):

## دازل ساقی

داستاو دیدنه دی ما ایښی زړدام و دائې
کونین به مې شفیع وی څوچې نهٔ مې قبلوې

خمار که مې پهٔ سر شي دازل ساقی را بولی
تشخیص به مې ډېر گران شي که مې هلته نه سپارې

تیر پر تیر که سره وایو آینده خو با یدښه شي
دعبرت ستر گه که نه وی خود به یوځ پر بې مزې

لومړنی استا دفطرت دی استعداد دئې بولو موږ
خپل فطرت دلته دی اصل ارسطو بوله دورې

دعشاقو مذهب لوړ دی داسمان ختل ډېر گران دی
زاهدان ورته حیران دی خیال ئې دی شیلې شیلی
قیل او قال مو مصلح نه شو دگو لیو کار ئې ورکې
دحیات رمز خاموشي ده نو دئې ولې لټوې

چې مشرب هلته پهٔ کار دی سل لښکری ورته هیڅ دی
یک رنگی ستا لوی تسخیر دی (حبیبی) کې و لرې

# د شهید پیغام

یوه ورځ مې نابېره پېش سفر شو　　د بولدک په سپین ډګر کې مې ګذر شو
د شهید پر هدیره مې جوړه نظر شو　　یو هیبت وزما پر ځان باندې دا اثر شو

ډېر ښونه زیبېده ښه منظره وه
د جنت د ګلو جوړه یو باغچه وه

نو مې جذب کړم له لارې مقناطیس ؤ　　هلته ورغلم هر یو شی نفیس ؤ
د یادګار منار ولاړ نـوی تأسیس ؤ　　په نظر کې مې په سرو وینو کمیس ؤ

شهیدانو داته راتلل کفن په غاړه
دا ښکاره سوه په دا خیال کې مې یواړه

په دا منځ کښې مو پرته یو حاتله وه　　دوی په ګډوه زما غوږونه بیکاره وه
خو آخر یې په بیرغ مخابــره وه　　مخابره کې یې وهاتــه اشاره وه

چې په موږ وه موږ خو وکړه واری ستاسو
دغه یو سر مو درلود راځنې جلا سو

د وطن په ښه ساتنه مـو سرور کـې　　شهیدان یو، قول عالم مو په خبر کې
د ښارګ په وینو رنګ مو دا ډګر کې　　خو ښکاره مو وغلیم ته خپل ظفر کې

که مو سر بایللو وطن مو وساتلی
امانت مو دی وتاته در سپارلی

تل تر تل ژوندو نـو وګڼۍ وځانته　　محشورن نه یـو داغـلی و سبحان ته
لا مو هیله ده اوس هم فضل و احسان ته　　منتظر یو د وطـن لوی عالـی شان ته

ته کړه وس، موږ په لا ستاسره همت کړو
ستاد پاره به دعاوې د عظمت کړو

مرګ خو حق دی هیڅ سړی به نه پاتېږی　　که کوچنی دی او که لوی ښه په پوهیږی
د شهید تر مرګ به هیڅ مرګ نه لوړیږی　　په دنیا او آخـرت به نـوم یادیږی

یوازې ګوره زموږ ودې یادګار ته
دغه سې رنګ عالي ښایسته منار ته

نظر وکه څو مری تیر سول عالـمونه　　په زرګونو باندې تیر سوله کلونه
نه ئې پاته سو نښان نه ئې نوم نه　　خو شهید دی په تاریخ لـري ثبتونه

په قرآن کې ثابت سوی ئې آیات دی
که ښکاره دی ګڼل سوی له ممات دی

که موږ ولاړو اوس وتاته نصیحت دی　　استقلال مو د څښتن یو لوی نعمت دی
درته ولاړ نـې دغـه مو امانت دی　　په سرو وینو پې ساتی دا مو وصیت دی

داټی وکړی و «نسیم» وته خبری
نو «نسیم» کړې دا دی تاته اوس ظاهری

محمد نسیم «نوری»

د احمدشاه بابا د لیسې فارغ التحصیل سردار شاه :



تهیه کوونکی : احمد «راشد»

# ځوانان ټولنی ته مسؤل دی

نن ورځ چې ملت او حکومت د ځوانانو د خدمت توقع لري نو موږ چې ځوانان یو د کار کولو قدرت لرو نو نه باید د خپل ژوند یوه لحظه بې ځایه تیره کړو په چټي او بیکاره شیانو پسې باید بې ځایه تلاښ و نه کړو خو ځینې ځوانان چې روزمره د هغوی کې نه وینو هیڅ د خپل وخت غم ورسره نشته حتی تر اوسه پوری د وخت په ارزښت نه دی پوهیدلی او د خدمت فکر خو ګی په فکر کښې لا هم نه ور ګرزی، خپل ګران وخت پر ځای د دې چې په مطالعه تیر کړی او ځان تنویر کړی برخلاف



ښاغلی سردار شاه

په بیکاره خیالاتو او افکارو شپې سبا کوی سینما او ځینی نور داسی پروګرامونه چې کم نه ګی چندانی ضروری هم نه وی په ښه ډول تعقیبوی او د دماغی انرژی د دې پر ځای چې یو څه ووائی او یا څه واوری د بل په غیبت او عبث ویلو باندی تیروی، نو د ځوانانو د پاره لازمه بلل کیږی چې روزمره راډیو پروګرامونه که خارجی وی که

داخلی تعقیب کړي او یا څه نه څه د جهان ورځني واقعات خو واوري چې البته دا کار به دی وادار کړی چې ډیر نور شیان زده کړی او و وائی وی.

موږ داسی هم نشو ویلای چې باید ځوانان سینما ته ولاړ نشی پوهیږو چې سینما او رستورانو ته تلل او د موسیقی اوریدل انسان د دې د پاره اماده کوی چې

پر خپلو ستړیاوو باندی غالب شی او هغه دفع کی. خو پدی لار کی نه باید افراط وشی.

ځرنګه چې ځوانان د نوی فکرو او نوی خیالاتو

خاوندان دی نه باید د خپل وخت زیاته اندازه په بیهوده سرګرمیو باندی تیره کړی، ځوانان باید د نوی فکر د پاره ځان اماده کړی او د خپل مسؤلیت احساس په ښه صورت سره وکړی او ځوانان باید د ښه اخلاقو خاوندان

او د ټولنی د مترقی کولو فکر ورسره وی او باید یوه هدف درلودونکی وی چې هغه عبارت د خدمت څخه دی. نو هر ځوان چې د داسی خویونو درلودونکی وی او د داسی

تشخیص قدرت ولری چې کوم کار زما او د خلکو په نفع دی او کوم کار زموږ په تاوان، نو واضح ده چې داسی ځوانان کار کولای شی. لنډه دا چې د هیڅ ډول قربانی څخه باید

ځان و نه ژغوری او د هر ډول ربړ او تکلیف د پاره پوره اماده ګی ولری، د داسی اعمال باید سرته ورسوی چې د خلکو د ذهنیتونو سره پوره تطابق ولری، هر ډول عمل ګی باید

د خلکو پسند او په ګټه وی. ځوانان باید د داسی قدرت خاوندان شی چې خلک ځان ته خوشبین کړی، پوهیږو چې هره ټولنه او هره جامعه د ښو او لایقو ځوانانو خدمت

ته اړه دی او نه شی کیدای چې د ځوانانو د خدمتونو څخه پرته پرمختګ په وجود راشی. هم دغه ننی ځوانان دی چې وظیفه لری هیواد ته د خدمت کولو مصدر وګرزی او

دغه وروسته پاته ټولنه ده چې د رسیدلو او لایقو ځوانانو د خدمت هیله لری یا په بل صورت باید ووایو ځوانان دی چې د وطن په پرمختګ کښی په ارزښت ناکه سهم ولری

او لري ګی نو باید کوښښ وکړه شی چې د تمدن د کاروان څخه پاته نه سو باید حساس و اوسو او باید داسی فکر وکړو چې د دغه ښه فکر کولو په نتیجه کښی د بدو شرایطو

پاته په ۲۳ مخ کی

لیکوونکی محمدامین (شیرزی)

# یو ښه ځوان باید څه وکړي؟

تر هر څه دمخه باید واضح کړو چې ښه ځوان څوک دی نو داسې ویلای شو چې: ښه ځوان هغه دی چې د وطندوستۍ او خدای پرستۍ حس ولري د بېچاره او بېوزله خلکو سره همکاري وکړي څو چې د هغوی د پاره د وطن خلک امید ونه پرېږدي و کي ولري ښه ځوان باید د اجتماعي مسئولیت احساس وکړي او د آینده خلکو د پاره خدمت کول په نظر کې ولري او عملاً ئې وښیي چې خپل وظائف څرنګه باید اجرا کړي یو ځوان باید مطمئن او د



ښاغلی محمدامین

چې ازادي خاوندوي د هر نوع مشکل په مقابل کې مقاومت وکړي څو وکولای شي و خپلو هدفونو ته ورسیږي اخلاقي جرئت درلودل او نرمي د یوه ښه ځوان د غوره خاصیتونو څخه ګڼل کیږي.

موږ ته معلومه ده چې د ترقۍ او پرمختګ په لاره کې انسان د سختیو او موانعو سره مخامخ شویدی ربړونه او تکالیف ئې لیدلي دي او هر نوع بدو حالاتو په واسطه آزار شویدی مګر بیا هم باغیرته میړونو داسې مقاومت کړیدی

چې هغه ټول له موانع ئې له منځه وړي او حتی هغه ئې هیڅ بللي دي.

نن ورځ ډېر ځوانان چې موږ ئې وینو نسي کولای د مشکلاتو مخه ونیسي او بسا دوی د هغه په مقابل کې مقاومت وکړي او په ژوند کښې نه موفقیت په قسمت او بخت پورې تړي او دغه حالات لکه دوی چه فکر کوي داسې نه ده بلکه ناکامي د دوی په ضعیف عزم پورې اړه لري ځکه چه ټینګ عزم او استقامت هیڅ وخت مغلوبیت نه پېژني او کلک عزم د خاصیتونو څخه هم یو دا دی چې مغلوبیت نه قبلوي.

ښه ځوان باید زحمت کش فعاله او سرتیری وي بواځې او بواځې خپل شعار کوښښ او زحمت وګرځوي او هغه وظیفه چې دوی ته سپارل شوې وي باید غاړه ځنې ونه غړوي او په ښه صورت سره ئې لکه چې لازمه وي سرته ورسوي.

نن ورځ چې د دغه خاوره او د دغه وطن ځوانان په خپل غېږ کې روزي د دې د پاره چې ځوانان خپل اجتماعي مسئولیتونه او د خدمت کولو د روند بار ترمز له ورسوي څو وکولای شي ټولنه د

هر ډول بد او چټي فکرونو څخه خلاص کړي ښه ځوانان باید پر ځان باور ولري د هیڅ اثر تأثیر لاندې رانسي بلکه باید د نوي فکر او د ښه عقل خاوندوي او د هر څه په باره کې دقت او غور وکړي که چېرې ځوانان هغه اوصاف چې ذکر شول ولري نو به دوی د جامعې ګټور غړي وبلل شي او ممکن دی هغه توقع چې دده څخه سته وکړي. ښه ځوانان هیڅ شی باید کورکورانه و نه مني او په هر څه کښې باید تر لازمې اندازې فکر وکړي او د هر څه او هرې موضوع په باره کې ښه قضاوت وکړي.

ځوانان چې د غسې شرایط ومني نو په ښه صورت سره به خپلې وظیفې اجرا کړي او هم به وکولای شي چې خپل ځان د یوه صادق غیرتمند او شریف شخص په حیث و خلکو ته ور و پېژني.

---

## غوره وینا وې

کوم وخت چې د فساد او ناوړه کارو مخ ونیول شي. نو د اولس سره طبعي ده چې آرامي، نیکمرغي او د ژوندانه د چارو پرمختګ مخ ته راځي.

انسانان په هم دغه آرزو دي.

(افغان سید جمال الدین)



تهیه کوونکی : بریښنا بخترکی

# د عینو د لیسې یوه تکړه زده کوونکې

پیغله مبارکه جوادی د ښاغلي میر محمد علي شاه لور په ۱۳۳۵ هـ. ش. کال په کندهار کې زیږېدلې ده په اوه کلنۍ یعنې ۱۳۴۲ کال کې ښوونځي ته داخله شوه او اوس د عینو د لیسې په نهمه ټولګي کې اول نمره ده.

پیغله مبارکه د لومړي ټولګي څخه تر نهمې ټولګي پورې اول نمره توب له لاسه نه دی ورکړی.

په ۱۳۴۹ کال کې ئې د لیسې د اداري له خوا تحسین لیکګ تر لاسه کړ، لکه هرنګه چې د ا خپله وائي : د تحسین لیکګ په اخستلو سره مې ذوق او علاقه دوه برابره شوه.

پیغله مبارکه د خپلو درسو په تیره بیا د ساینسي مضامینو سره مینه لري او سرله او سه لا په ژوندانه کې د ښوونکې په شان شغل غواړي.

پیغله مبارکه د ا و ښئي ټولنې ځوانانو ته هینې لارښوونې کوي چې په دې ډول هغه د لته را نقلوو :

## د ځوانانو وظیفه او رول په اجتماع کې

که یوه لحظه فکر وکړو او د جامعې خلکو د سن د لحاظه بررسي کړو و دې نتیجې ته رسیږو چې درې ډوله خلک په ټولنه کې شته یعنې کوچنیان، ځوانان، او زاړه چې هره ډله په خپل وار سره د ټولنې



پیغله مبارکه

وظایف پرغاړه لري. مثلاً کوچنیان وظیفه لري چې مکتب ته ولاړ شي د علم او پوهې څخه برخورداره شي تر څو چې په ځوانۍ کې د خدمت مصدر وګرځي. همدارنګه زاړه خلک چې د علم او پوهې سره آشنا وي او په ځوانۍ کې ئې خپل وخت د خدمت د پاره صرف کړی دی. اوس نو د تېرو تجربو له امله د ا وظیفه لري چې ځوانان رهنمائي کړي.

د ځوانانو وظیفه د نورو طبقو تر وظیفو درنه ده ځکه چې د دې زمینه مساعد وي چې د نورو د پاره خدمت وکړي او د خپل وطن د اقتصاد او علم سویه لوړه بیائي.

ځوانان د خلکو په ژوند کې مهم رول لوبوي یعنې که د یوې ټولنې ځوانه طبقه صادقه او راستکاره وي او مقصد ئې د خپل وطن او خلکو د پاره خدمت وي او تر وسه وسه کوښښ وکړي چې د وطن خلک یو پور ډېل د ظلم، رشوت خوړلو بې سوادۍ قاچاقبرۍ او داسې نورو څخه و ژغوري نو زما په نظر باید یو ځوان د الاندې ټکي مراعات کړي . :

۱- استقامت : استقامت او صبر یوازنۍ وسیله ده چې د هغه په ذریعه لو سره و مقصد ته رسیدای شو.

پاته په ۳۲ مخ کې

## ...ری ګڼې د تاریخي پوښتنو ځوابونه

د ژغورنې انا ډلیسې څخه بیغلې
...لي موږ ته د تیرې ګڼې د تاریخي
...ښتنو په باب صحیح ځوابونه را لیږلي
...چې دا دي د دوی په نامه یې چاپوو:

۱- د اقصی مسجد حضرت سلیمان (ع)
...خوا جوړ شوی دی چې په بیت المقدس
... واقع دی.

۲- د عباسیانو وروستی خلیفه
...تصم بالله ؤ.

۳- طاهر بن حسین (ذوالیمینین).

۴- په ۱۷۸۹ عیسوي کال کې.

۵- په ۱۹۱٤ع شروع او په ۱۹۱۸ع
...ی پای ته ورسید.

۶ متحده عبارت له شوروي، امریکا
...انسې او انګلستان څخه دي او متفقین
...عبارت د المان او ایټالیې څخه دي خو
...اپان هم په غیر رسمي ډول ورسره
...لګری ؤ.

۷- د ناتو پکت، د وارسا پکت
...سینټو پکت او د سیټو پکت

## د جغرافیې په باب ځینې د دې ګڼې پوښتنې

۱- د نیپال پایتخت کوم ځای دی؟
۲- بوتان چیرې پروت دی؟
۳- د آیرلینډ پایتخت کوم ځای دی؟
٤- هغه هیوادونه وښیاست چې هم
...اروپا او هم په آسیا پورې اړه لري؟
۵- سکانډینیویایي هیوادونه
...کوم دي؟
٦- د باندنیو هیوادو سره د
...افغانستان مهم تجارتي بندرونه وښیاست؟
۷- دارالسلام د کوم هیواد مرکز دی؟
۸- مشتري څو سپوږمۍ لري؟

د عبدالکریم (نیازي) رالیږنه

# د حنان بارکزي پېژندګلوي

په تیره ګڼه کې په همدغه مخ کې موږ یو عکس چاپ کړی ؤ او د ګرانو لوستونکو څخه مو د هغه د پېژندګلوۍ او سوانح په باب معلومات غوښتي وه. نو دا دی د ګرانو لوستونکو څخه ښاغلي عبدالکریم نیازي موږ ته د هغه عکس په باب چې د حنان بارکزي ؤ، معلومات رالیږلي دي. په دې توګه موږ د هغه مننه کوو. (اداره)

د کندهار د ښار د جنوب په خوا کښې د هغه ترنک د سیند پر غاړه چې ملک یار بابا په ۹۷٤ ه کې دا ډول ستایلي دی.

ترنګ بهېږي ترنګه بهېږي غاړې ترغاړې
زمانه کې خوشحال لا لي غواړي

یو کلی دی چې د مرتوونې (هغه معطره ونې دي چې پاڼې یې د لګېدلو ځای بو نوا او دمې د پاره د عطرو کار کوي) پکښې شنې کېږي دا کلی د همدې ونې په نامه مشهور دی. او مرتکلا یې بولي دلته یا پر همدې فیاضیه محکه د محمد حسن په کهول کښې یو بل د فیض نیالګی هم زرغون شو چې د دا بې ابتکار به ډېرو غوړېدلو ګلانو یې د شعر دنیا و زوله او د بداعت په نازکې یې د هغه ځای د بدلو خوشونکی زړونه ښاد کړل.


عبدالکریم (نیازي)

تاریخ ښیي چې د اعلحضرت شاه حسین او احمدشاه بابا د ادبي بزم د اپېدې خوا چې کوم بل ادبي بزم د سردار مهردل خان په وخت کې په مستقي کړوه د دې بزم بلبلانو د ولې نه یو د سوز او ګداز سند د غاړې حنان بارکزي دی. چې یو ساعت خپل زړه غافل نه غواړې او وائي:

د اغفلت وهلی زړه به ریزمریز کړم
ماتیده د زنګ وهلی قلف کلی ده

د حنان بارکزي ژوندون (۱۲۵۰) ه. کال د شپږ او ورځو په کچه کې داغلی دی او په دغه وخت کښې د حمید ماشوخیل خوشه چېنې کوي لکه چې وائي:

د حمید د خوش نظمې په زراعت کښې
دا «حنان» یې دی د شعر خوشه چین

د حنان شاعري د هر چا خوښېږي. او د ده شاعري دا دب په بداعت څه مړه شاعري د ده دې ډېر نازک خیال له شاعر دی دا دی د ده د شعر یو نمونې ښودل کېږي.

پاته په ۳۲ مخ کې

د لواء الاسلام له عربي مجلې څخه:

د عبدالله نجیب ترجمه:

# فخر رازي

په ۵۴۴ هـ کال کې ابو عبدالله محمد چې لقب ئې «رازي» دی «دري» د ښار په یوه علمي او ادبي کورنۍ کې وزېږېدی. د پلار ئې امام ضیاءالدین عمر نومېدی چې په دغه ښار کې خطیب و.

امام فخر رازي د لومړي فقې، اصول - او تفسیر تحصیل له خپله پلاره څخه وکړ بیا د نورو علومو تحصیل ته متوجه شو او په لږ موده کې د نبوغ درجې ته ورسېدی. په عربي او دري ادب کې ئې پوره مهارت پیدا کړ او په دواړو ژبو کې ئې لوړې قصیدې جوړې ولې چې د یونکو د حیرانۍ موجب ګرزېدلې.

فخر رازي د ژوند په لومړي سر کې په مادي لحاظ مسکین او معنوي بډای و مګر پس له مرګه ئې اتیا زره دیناره پاتې شوه.

د امام فخر رازي وهیبت او جلال ته د علم او فضیلت له برکته څخه پاچهان ته سوای رسیدای دري سوه طالبان به ئې هره ورځ په رکاب کې تلل. و تدریس ته به ئې په لومړي صف کښې غټ طالبان او په دا نورو صفو کې درجه په درجه سره نور طالبان کښېنستل. که به له دوی څخه چا غوښته پوښتنه وکړي لومړي به د هغه جواب لویو طالبانو ورکاوه د لویو طالبانو تر عجز وروسته بیا مراجعه و امام فخر رازي ته کېده.

امام فخر رازي د خوارزم، ماوراءالنهر او خراسان تر سفر وروسته د هرات ښار ته ولاړی او هلته د شیخ الاسلام په نامه مسمی شو دلته به ئې د لیرو ښارو پوهان و مجلس ته راتلل او علمي مناظرې او مباحثې به ئې ورسره کولې. په دې وخت کښې حق بینه محققین متیقین شوه چې په نبوغ کښې تر امام ابي حامد غزالي لا اوښتی دی.

سبکي په طبقات کښې له کمال محمود بن عمر رازي څخه نقل کوي چې ما له امام فخر رازي څخه واورېدل چې ویل ئې که څوک د قرآن په خوند و پوهېږي د فلسفې نوم به وانخلي.

ابن صلاح د قطب طوغابي له قوله څخه وایي چې دوه واره ما له فخرالدین رازي څخه واورېدل چې په ژړا به ئې ویل: کشکې ما علم کلام نه وای زده کړی.

رازي په هغه کتاب کښې چې د ذات په څو لو کښې تصنیف کړی دی لیکي ما د فلسفې په مناهجو او د کلام په طریقو کې تأمل وکړ مګر غیر د قرآن له صحیحې طریقې څخه مې د علیل له پاره د شفا لار نه کړه پیدا.

د امام رازي تفسیر په کلام کښې د عقایدو پر اصولو باندې قایم دی څېنې مخالفین وایي امام فخر رازي په خپل تفسیر کښې دا سې اوږده شیان ځای کړي دي چې هیڅ حاجت ورته نه و مطلب دا دی چې هر شی په کښې سته خو تفسیر په کښې نسته. رازي له اشعریه و سره د عقایدو په اصولو کې له شافعیه و سره د فقې په فروعو کې او دغه رنګه ئې له حنفیه و سره هم په څینو مسایلو کښې مخالفت درلودی حضرت امام رازي د یکشنبې په ورځ د ۷۰۷ هجري کال د شوال د میاشتې په لومړۍ نیټه له دنیا څخه سترګې پټې کړې او په هرات کښې ښخ شو په امام رازي نه یوازې مسلمانان بلکه د دنیا ټول خلک فخر کوي او له تصنیفاتو او تألیفاتو څخه ئې استفاده اخلي.

# غوره ویناوې

ځوانمرد هغه دی چې خپل نفس اداره کړي او خپله آبرو وساتي.

هغه څوک چې کراره، کراره پر لاره ځي هیڅ کله لار لیرې نه ورته معلومېږي.

فقر او نیستي د زحمتکښ سړي په برخه کېږي ځکه هیڅ کله د اجرات نسوای کولای چې د بل و کور ته ورد ږي.

(فرانکلین)

په مشکل سره کولای سوای چې د کاله یو دوست پیدا کو مګر په یوه ساعت کې کولای سو چې خپل دوست آزار او د لاسه ورکو (چیني)

د غلام صفدر پنجشیري لیکنه

پښتو کوونکی کریم

# فلسفه څه شی ده؟

## دوهمه برخه

### دفلسفې غایه:

فلسفه دغایې په لحاظ په څو لوییو برخو ویشل شوې ده، دیوې پېړۍ څخه تر بلې پېړۍ او دیوه عصر څخه تر بل عصر پورې یې غایه توپیر مومي.

په لرغوني یونان کې ئې دفلسفې غایه دحقیقت په کشفولو کې دحقیقت له پاره ګڼل دغه طرز تفکر دطبیعیونو په فلسفه کې راپیدا سو اودافلاطون او ارسطو په واسطه اوج ته ورسیدی. دارسطو په نیزد نظري علوم له دې امله چې دژوندانه عملي هدفونه تر سره کوي او همدارنګه ددې علت له مخې چې بشري اشرفه قوه (عقل) په نظري علومو کې د کمال تر حده تجلي کوي نو ځکه یې نظري علوم تر عملي علومو شریف بلل.

تر ارسطو وروسته په یونان کې رواقي او اپیکوري فلسفې راڅرګندې سوې اودفلسفې څخه یې یوه بله غایه خپل هدف وګاڼه په دې معنی چې دحقیقت دکشفولو څخه یې دحقیت دپاره ډډه وکړه او اخلاق ته متوجه شول.

په منځنیو پېړیو کې هم په اسلامي نړۍ او هم دمسیحیت په عالم کې دفلسفې غایه دعقل او نقل ترمنځ دسازش د ایجادولو څخه عبارت وه. یا په بل عبارت دحکمت او شریعت ترمنځ، د کلام علما او دلاهوت علماو وفلسفه دعقیدې ددفاع او ددیني چووڼو د تقویې په غرض په کار اچول.

دعلم دنهضت په عصر کې طغیان او سرپېچي چې په منځنیو پېړیو کې ددیني سلطې په مقابل کې وجود درلود، دعقلاني مجرد تفکر پرضد چې دیونان دفلاسفه ؤ شغل ؤ برتري پیدا کړه او تفکر او اندیشه ئې د ژوندانه د عملي خدمت په لار کې په کار واچول.

په نوي عصر کې یعنې د ۱۷ پېړۍ په سر کې علمي روش چې دطبیعت په کتنه او څېړنه بناؤ په څرګنده ډول ښکاره سو او ددې عصر فلسفه دکلیسا او ارسطو د فلسفې په مقابل کې او دنهضت دعصر د فلسفې یاته برخه بلل کیږي. اودهغه وخت را هیسې فلاسفه ؤ دغه نظر په چې «علم دعلم دپاره» او دفلسفې اله یکې د اخروي ژوند سره رد کړه او نظري تفکر ته یې دعلمي ژوند سره ارتباط ورکی.

په دې اساس که دفلسفې غایه په نظر کې ونیول شي او د منطق دعلماوو په قول یو جامع او مانع تعریف وضع کړو چې په ټولو پېړیو کې په دغه علم باندې صادق وي، نو په یوه متعذره کار به مو لاس پورې کړی وي:

بر سېره پر دغه بېل بېل فلسفي مکتبونه دفلسفې په هکله مختلفې نظریې لري او هر یو ددوی څخه فلسفه داسې تعریفوي چې دهغه دتفکر سره برابره وي؛ دمثال په توګه ځینې ددوی څخه فلسفه دمطلق موجود پېژند نه ګڼي خو دمادي مکتب پیروان دخپلې طبع په اساس دغه تعریف ردوي لکه څرنګه چې «سپنسر» داډول نظر نه درلودی. په دې دلیل چې د موجود مطلق دهستي سره سره، محاله ده چې بشري عقل دهغه یاب ځاو بوهوي. دا به ډېره بې ځایه وي چې هغه څوک چې فلسفې د خپل ځان ورک سوی قلمداد کړي وي او هغه دفلسفې څخه بحث کوي.

دغه رنګه تحلیلي فلسفه چې دپېښو FACTS د تحلیل او داخباري قضایاوو STATEMENTS سره سرو کار لري، دوې فلسفې علمي کوي یعنې فلسفه باید ځان دهغو مسایلو سره چې دقاطع حل قابلیت ولري، مشغوله کړي، خو بیا هم دغه تعریف نه قبلوي همدا ډول وجودي مکتب E xistentialism دعام وجود څخه سترګې پټوي او دانسان دمشخص وجود په باب بحث کوي. په دې اساس دیوه مکتب دفلسفې تعریف په بل مکتب باندې صادق کیدای نه شي.

(۳۴ مخ)

علاوه پر پورتنیو مشکلاتو
د فلسفې تعریف په هکله یوفنی
مشکل هم سته او هغه دادی چې
دفلسفې په تعریف کې نژدې جنس
چې معمولاً ذکر کیږي عبارت د علم
څخه دی. یعنې فلسفه علم دی چې
مشخص خواص لري. نو لومړی باید
دفلسفې علم او د نورو علوموترمنځ
چې هغه د یوه واحد جنس تر عنوان
لاندې مندرج دي، توپیر وسي.

او دا پیله نوعی فصل له لارې امکان
نه لري او فلسفه داسې نوع چې
د هغه غرض په غور بیان کړي، نه
لري او سره ددې که د هغه وجود
فرض هم کړو، دلاندینو اسبابو
له امله دواقعیت سره بشپړه توپیر
لري.

الف ـ هغه موضوعات چې په فلسفه
کې تر څیړنې لاندې نیول کیږي
دنوعی په لحاظ دخصوصي علومو
دموضوعاتو سره توپیر نه لري.

ب ـ ممکنه نه ده چې دعلمي
مسایلو په هره مسئله کې، د هغه
فلسفې جز یا برخه د هغه برخې څخه
د علم دخاصی څیړنې لاندې راځي،
جلا کړو.

دغه دی هغه مشکلات چې
دفلسفې په تعریفولو کې ورسره
مخامخ کیږو او دفلسفې دمشهورو
تعریفو څخه یو تعریف د بحث په
سر کې په دې غرض چې دې پرو
پوهانو قبول وګرځی، وړاندی
سو، ترڅو چې نوی زده کونکی
دفلسفې اندیښې سره اشنا سی
او یا ویل سی چې فلسفه په یوه
خاصه پیړه کې داسې یا هسې
تعریف کیدل، یا د یوه خاص فلسفې مکتب
له نظره دا ډول یا هاډول تعریف کیدم
یا د یوه خاص فیلسوف په عقیده ...
هغه مفهوم افاده کاوه، خو داسې جامع
او مانع تعریف چې په ټولو فلسفې اعصارو
یا د ټولو فلاسفه او فلسفې مکتبو له نظره
په فلسفه باندې صادق وي، نه یوازې
دا چې سخت دی بلکه محال دی.

## دفلسفې اندیښې عوامل:

دخبرو کولو په ترځ کې دفلسفې
اندیښې له عواملو څخه دغه پوښتنې
طرح کیږي:

ولې د جهان د څرنګوالی په باب
تفکر موږ ځانته ور کشوی؟
ولې د انسانی نوعی ټول غړی معرفت
ته میل لري؟

ددې پوښتنو په جواب کې ویلای سو
چې دغه میل ډیر پیچلی دی او ددوو ډلو
امورو څخه چې یو یې عملي او بل ئې
نظری دی، دانسانانو ددلچسپۍ وړ
ګرزی. که څه هم دغه دوې ډلې دواړه
انسانی طبیعت ارضا یا راضی کوی خو سره
د هغه څرنګه چې د هدف په لحاظ او ارضا
له پلوه یو د بله توپیر لري نو کولای سو چې
هغه یو د بل په مقابل کې راولو.

## ۱ ـ دمعرفت عملی انګیزه:

دانسانی ژوند سمون.
بشر د نورو حیواناتو په څیر دژوندانه
ساتنې او تنازع بقا ته ضرورت لري.
په دې اساس ددوو لارو څخه یو توافق
ADAPTATION او بل تکیف
ADGUSTMENT یا خپل دژوندانه محیط
دځان سره برابر وی؛ یا په ځان کې
بدلون راولی څو د محیط سره یو رنګ
سی او څرنګه چې د حیواناتو توان په دې
برخه کې محدود ده ځکه نو کولای سو
دا عملیه د بشری شواخصو څخه
وشمیرو.

ددغو اساساتو له مخې ک...
وویل سی چې زموږ د عملی فعالیت...
لو په برخه زموږ د ژوندانه د مح...
د سمون او خپلو ځانو د سمون د پاره...
وقف ده نو دا یوه صحیح خبره ده...
علاوه پر هغه د تخیل قوی انسان...
ته دغه قدرت ورکړی دی چې دخپ...
طبیعی ارزوګانو او غوښتنو څخه...
یو بشپړ تصویر طرح کړی نو له دغ...
ځایه څخه ده چې په نړۍ کې...
دانسان د موقف بهتره کولو ته...
عالی افکارو او ثابتو غرضونو...
له خوا رهبری کیږی او دغه څه...
د اجتماعی، اقتصادی او اخلاقی...
تطور لارچوونکی او محرکه قوه...
بلل کیږی.

دانسان قدرت د ځان او دخپل
محیط د سمون، بدلون او ښتمنی په
هکله په طبیعی قیدونو محاط سوی
دی چې یوه برخه د هغو دده د ځان
د خاص عضوی جوړښت څخه نشئت
کوی او بله برخه د خارجی جهان
د ثابت ترکیب څخه راځی. او
دده عملی فعالیتونه باید ددغو
حدودو په دننه کې صورت ومومی.

دتوافق یوه زیاته برخه په خپله
دانسان د ثابت جوړښت او دخارجی
جهان د ثابت نظام سره درضایت
په اساس صورت مومی. ځکه کله
چې انسان د وجود د نعمت څخه تن سی
او په طبیعت کې شکلی او مرغوب
شیان ومومی نو کولای سی په
نیکمرغی د هغه په غیږ کې ژوند

کړي، مګر دد غوښتنو دنوبه چوکاټ کې چې
ـه د اختیاره وتلي دي او دده غوښتنې یې غځېدلې دي
ده د ناراضۍ سبب ګرځي په دې اساس ویلای شو چې د

افق دعملي یوه برخه چې د انسان او طبیعت تر منځ ده،
نظره بې نامرغوبه ښکاري او همدا علت دی چې
ان خطا باسي او یو خیالي جهان جوړوي.

که څه هم د انسان عملي فعالیت نه سي کولای چې
چپاري محدودیتونه د خپلې لارې څخه لیرې کړي
نګر د هغه خیال کولای سي چې له دې عهدې ووزي
لکه خیال ته یواځې هغه اهداف ترسیموي چې دده
ول قیودو او محدودیتو په داخل کې د تحقق امکان لري
لکه کولای سي د خپل زړه د غوښتنې سره سم
د اسې جهان چې د شر او فساد څخه په امان او د بشري
کمال سره مناسب وي، جوړ کړي؛ لکه هنر چې شیان
کیما نه شاته ترسیموي تر څو چې د هغو بڼه ښکلې
ایسي.

۲-: **معرفت نظري انګیزه:** ترعمل او بې غرضه
لتني. کنجکاوي او پلټنه د انسان د مشخصاتو څخه یو مشخص
ی چې نور حیوانات په تېره بیا هغه حیوانات چې
انسان تـــه ورتـــه دي پـــه هغه کې کمـبون
ري. کنجکاوي په ځینو حیواناتو کې په خاصو
مناسباتو او مخصوصو علایقو پورې اړه لري او یوه زیاته
رخه د هغه په متناوب او برلاسي ډول صورت مومي.

و د انسان په نزد سره د دې ډول کنجکاوۍ یو
ل ډول مداومه کنجکاوي هم سته چې په هر مناسب انګیزه
پیدا ای سي.

باید په خاطر کې ولرو که څه هم دا ډول کنجکاوي
ژوندانه د معون او بقا د پاره ښه وسیله ده خو سره ده
هغه دده کنجکاوۍ حقیقي وظیفه هغه ډول ارضاده چې د
طبیعت او د هغه د محتویاتو د تفحص او څېړنې څخه
لاسه کېږي. د نظر شرح او ارضا په دوو ډولو تحقق
مومي.

یو د وخت او ځای د محتویاتو د معاینې،
ځمکې پر مخ د شیانو د کتنې او مشاهدې، د لیرې
کهکشانو د مطالعې، د ګډ شته تجدید او د
ـینده د اړیکل له لارې. بل د وخت او ځای د څو لو

محتویاتو د هم آهنګه کېدو له لارې، تر څو چې
پېښې او حوادثات د امکان تر حده د فهم وړ وګرځي
انسان په خپل خلقت کې نه یواځې دا میل لري چې
جهان له خپل نظره بهتر کړي، بلکه دا میل او
استعداد هم لري چې جهان لکه څرنګه چې دی همغسې درک
کړي.

دعامې کنجکاوۍ حس بې له اخلاقي عالي او
عملي هدف څخه په فعالیت پیل کوي، دا حس
و منکشف ته توجه نه لري بلکه د خپله ځانه
د کشف لذت وړي او هغه وخت د هغه څخه
ناراضي منځ ته راځي چې ونه کولای سي یو موقف
وسنجوي او څرنګه چې سنجش حاصل سي د
هغه رضائیت برابرېږي لنډه دا هغه وخت
چې انسان د کنجکاوۍ د میل په اساس وپارېږي د عملي،
اخلاقي او مذهبي نتایجو په وړاندې د ده اندېښنې
بې سنجش وي او هغه شی چې ده په نظر کې مهم تلقي
کېږي فهم او درک دی.

## پرزه پوري ځاورېځې

دزړه غوټه کې راته وویل اسمان
څلـه هر اسرار ګڼـې زما په فرمـان
ګرزیده د زماني که زما په لاس وای
نو به ولې ګرځېدلای ده پخپله سرګردان

✡✡✡✡

زړګیه! پوه به نه سې په اسرار د حقیقت
حیران دي ورته پاته شریعت او طریقت
نو دلته په سر ومیو جوړ جنت کړه ځان د پاره
هلته څوک خبر دي په ازل او په قسمت

✡✡✡✡

ودنیا ته چې یکسه یې را غلی
څه پر واسته که یکسه ځې آغلی
چې د آب عزت څښتن یې کړلی دلته
هلته هم به یې په د سره ښاغلی

دخیام د څلوریځو ترجمه

غلام فارق (انورزی):

# اوس هم په کلیوالي سیمو کې دغنمو او دانو کرنه پرپخواني طریقه باندې کیږي

تردغه سرخط لاندې موږ غواړو چې د ګرانو او سټونکو د پاره په کلیوالي سیمو کښې د غنمو او نورو دانو د کرنې په هکله معلومات وړاندې کړو کوم چې پر پخواني طریقه باندې اوس هم دوام لري.

اوس چې د ساینس او تخنیک د پرمختګ سره سم په نړۍ کې د کرنې او اوبو لګولو په سیستمونو کې هم تخنیکي بدلون راغلی دی او نن ورځ د کرنې او اوبو لګولو چارې ماشینیزه شوي دي په پرمختللو هیوادو کې د کرنې او اوبو لګولو چارې په عصري او تخنیکي ډول سره فني شکل موندلی او د کرنې او اوبو لګولو د پاره تخنیکي سیستمونه منځ ته راغلي دي. اوس اوس مخ په انکشافو هیوادونو کښې هم د کرنې او اوبو لګولو چارو ته زیاته پاملرنه اوښتې او په دغه لاره کې کوښښ روان دی ترڅو چې

دوی هم و کولای شي د کرنې د پراختیا او انکشاف د پاره د کرنې د عصري او تخنیکي وسایلو د په کار اچولو او د هغو د فني لارو چارو د پاره د فني پرسونل د روزلو او ورسره د کیمیاوي سرې د استعمال او د اصلاح شوي تخمونو د لاس ته راوستلو په لاره کې د منظمو زراعتي پروګرامونو د طرح کولو

او وروسته د هغو د تطبیقولو د پاره د مالي امکاناتو په چوکاټ کې خپل د هیواد پخواني زراعتي سیستم په اوسني ماشینیزه سیستم باندې بدل کړي.

زموږ په ګران هیواد کې هم د نوو انکشافاتو او پرمختګونو په لړ کښې د غو کلونو راهیسې د کرنو او اوبو لګولو د عصري کولو او پراختیا د پاره په زړه پورې انکشافي پلانونه طرح او تطبیق شوي دي چې د دغو عامه المنفعه

پروژو په منځ ته راتللو سره زموږ د هیواد د کرنې او اوبو لګولو په چارو کې څرګند تحول او بدلون راغلی او د هیواد د مسعود تیا او ودانولو په لاره کې مثبت او اغیزه ناکه ګامونه مخ په وړاندې اخیستل شوي دي او د ګران هیواد په ګوټ ګوټ کې پراخې شاړې



د عصري کرنې یوه منظره چې د ټراکتور په وسیله صورت مومي

دښتې ځمکې د کانالو او لویو ویالو او بندونو د جوړېدو له امله تر اوبو او کرنې لاندې راغلې او اوس ګټې اخستلو او حاصلاتو ور کولو ته چمتو دي چې د هغه جملې څخه د ننګرهار د کانال د پروژې ځمکې، د پروان د اوبو لګولو پروژه، د هلمند او ارغنداب د وادي د پروژې ځمکې، د غزني د سردې د بند پروژه او نورې کوچنۍ او

ـي زراعتي پروژې دېادونې
ـړدی چې دهغو څخه مثبتې او په
ـړه‌پورې نتیجې لاس ته راغلې
ـزموږ دهیواد داقتصاداو کرنې

ـیاوړی کولو په‌لار کې ئې
ـیته آغیزه څندلې ده چې
ـگران هیواد دکرنې د زیات

ـمختگ‌اوانکشاف لپاره دښې
ـیندی ژېرې‌ورکوي.

اوس داخو اصل مطلب ته
ـې هغه‌زموږ په کلیوالي سیمو کې
ـغلواودانو د کرنې د طریقې
ـڅخه عبارت‌دی.

لومړی‌: دغنمو دکرنې په
ـب خپل بحث شروع کوو.

دمخه‌تردې چې دمځکې د
ـړ به‌کولو وخت‌راشي بزگراو

ـرو ندگر یوه جوړه غوایې
ـیوی دآلاتو سره مځکې ته
ـیایي او په‌هغه‌ټاکلې پټي کې

ـکوم‌چې‌دوی ئې داوبه کولو
ـیال اري دبوی د رخت په ذریعه
ـکر کونه کاږي (کرکونه) خیږی
ـغه کرښې دي‌چې‌وپه‌چه‌مځکه

ـښې کوم وخت چې پر مځکه
ـاندي بزگر او کروندگراوبه
ـیروي نودویالې‌اوبه‌کوم چې

ـپټې د اوبو کولو دپاره ئې
ـاوستلې وي نوهغه اوبه پرڅو
ـرخوو ښې او بیائې پر مځکه باندې
ـیروي مطلب‌دا‌چې بزگر او

ـکروندگر‌به‌ډېر مهارت سره د
ـمځکر په‌اوبولو کې زیار باسي
ـڅو چې ټاکلې مځکه سرترپایه
ـو به‌شي بې له‌دې څخه‌چې دمځکې
ـکومه برخه‌او بې کنده کېږي د



دا عکس دوه‌تنه‌بزگران ښیي چې په پخوانۍ طریقه په
پوله جوړولو لگیادي

پټي په څېنو برخو کې که کوچنۍ اوړدي
وي بزگر د یوم په‌واسطه په هغه کښې
وړې‌وړې کرښې جوړوي چې او به
یکښې جریان پیدا کې او هغه ځایونه

وچ پاته نه‌شي چې دغه کرښو ته په
کلیوالي اصطلاح هله وائې د مځکې
او بول په‌دوه‌دوه‌صورت‌مومې پړې
ټول‌چې لومړی ځل سرترپایه پټې او به
کوي دوهم ځل بیاپردغه‌او به‌شوي پټي
باندې نرۍ نرۍ او بـــه
اچوي ترڅوچې مځکه ښه لنده اونم

واخلي بیانو او به ځنې اړوي، ورو سته
تردوو ورځو دا او بولو څخه‌د پټي دقلبې
کولو کار شروع کېږي چې هغه‌هم پدې

ټول دی لومړی پلا بزگراو کروندگر
په هغه‌او به‌شوي پټي کې کوم چې دهغې
ورځې د بوي کولو په‌اندازه‌وي دغنمو
تخم وشندي دتخم دشندلو ورو سته بیا

بوی شروع کېږي هر وخت چې او به‌شوي
پټې ټول له‌قلبه‌شي بیانو پر هغه بوي شوي
پټو باندې ماله تېروي ترڅو چې د بوي

خوا د غنمو تخم تر خاوړو لاندې شي چې
مرغان ئې ټول نه کړي او د بلې خوا
دغه بوي‌شوې مځکه هواره او نم ئې

وساتل شي تر قلبې او مالې
ورو سته تر هغه بیا د پټي د
تیارولو دپاره څو تنه بزگران

کروندگر په ټوله‌ایز ټول سره
یوځای کېږي‌اودوه‌تنه‌دپل کښې
په‌ذریعه په کرل‌شوي پټي کې پلې
او کردان جوړوي ترڅو چې

کرل‌شوي‌مځکه‌دا و بولو دپاره
تیاره‌اوچمتو شي دغه‌دوه تنه کرم
چې دپل کښې په‌واسطه کرل شوي
مځکه پلې کوي دغه په کلیوالي
اصطلاح شغړې بولي.

دلته دغه خبره دیادونې وړه
گڼو چې‌ووایو په‌یوه ورځ کې یوه
جوړه غوايې ترڅلور دمنه‌زیات تخم
نشي کرلای هغه‌هم چې دغو یو
جوړه‌ډېر تکړه غوايي وي.

کوم وخت چې کرل‌شوي پټي
ټول له پلې او کردان‌شي بیانو تر
هغه پورې غنمو ته او به‌نه‌ورکوي
ترڅو چې غنم راشنه‌سي. که کال
آبادوي او دژمي په‌موسم کښې
بادا ونه‌وشي نود کرنې له‌وخته بیا
تردرو څلورو میاشتو پورې غنم

...ی اچوي چې د غنمو دوږو سرونه لاندې او دناړې
...وي ئې پوړ تهوي د ا ځکه چې ترمیده کیدو تر
...پوري چوغکي او نور مرغان تاوان ور پېښ نه کړي.

...رمندو نو چه غنم لو يږي هر ځقي چې دو ا ښکي ځځه
...س شي او بر درمندو لو يږي دغه بیا په کلیوالي
...طلاح دلی بولی.

ځیني وختونه د بقو ځښتن خپله برخه غنم په اشر باندې
...ی اشر د اسې دی د غنمو ځښتن د خپلو بزگرانو او نورو
...و الو ځځه غو ښتنه کوي چې سبا زما د غنمو د ریبلو
...ردی تاسو باید په گډه د اسې چې دوی ورسره موافقه

...ی بیا د اشر خلک په دستجمعي توگه سهار وختي
...ه اشر ته ورځي او ټوله په گډه د غنمو په ریبلو پیل
...ی، ځښتن کوم په غنم ئې په اشر ریبل کیږي په دغه ورځ

...ر د خلکو په اندازه یعنې هر څومره چې ئې اشر ته
...بللي وي ډوډۍ مره او ډیره پخوي او هم پسه یا اوزکړي
...لوي او د اشروالاوو د پاره ښه ښوروا جوړوي او غرمه
...ه اشروالاوو ته که بزگران دي او که کلیوال په ماړه

...پر یمانه ډوډۍ ور کوي، د اشر خلک تر غرمې پوري
...سټي په ډول د غنمو د ریبلو کار کوي د غرمې ډوډۍ
...ور دوسته بیا د غنمو د ریبلو د پاره مجبور نه دي ځکه

...دغه کار د مرستې په ډول په رضا کاره توگه سره
...ی کوم قید او تکلیف پکښې نشته د کلي او بانډې
...سې ی په ډېره خوښۍ او شوق په اشر کې گډون کوي،

...گران او لو گري د غنمو د ریبلو پیل د ملي اتڼ په نارو
...ښتني ادب په خوږو لنډیو سره کوي، ځوانان په
...ه د غنمو د ریبلو په وخت کې ډول ډول ښتني خوږې
...ه او د اتڼ نارې کوي چې ډېره خوږه د لو نارهئې

...ی ډول شروع کیږي چې د غرلی سینې بوه پښتنه
...له خپله محبوب د دغه لنډیو په ویلو سره لوته
...بولي.

لـونـگـڼ کـسـرمـه!
که مې لو گیږشو یاره تا به راولمه!
لـونـگـڼ کـسـرمـه!

...گران چې د غنمو کودې ټولې کړي نو د کرل شوو غنمو
...کله باندې ښه واړاو هم غنمو پرې د او هات شوي وږي
...ښې پاتې ږي دغه بقیه چې غنم ځینې ټول شي و ډوا ئې

بیانو و دغه و ډوته بزگران او کروندگر خپل پسونه
او غوائې راولي او په دغه ځمکه کې ئې څروي، په دغه
وخت کې چې بزگران او لوگري د غنمو کودې ټولوي
نو د کلي کوچني هلکان او نجونې هم د غه ووډو ته راځي

او په دغه وډو کې، د غنمو هغه وږي چې یاد کودو د ټولو لو
په وخت کې پاته شوي وي هغه ټولوي او کیدیه ځینې تیږ ی
او خپلو کورونو ته ئې وډې هروخت چه دغه کیدیه

ډېرې ټولې کړي بیا ئې د لرگي په واسطه میده کوي
او غنم ځني جلا کوي هروخت چې د فصل غنم ټول له لوش
او درمندونو ته یووړل شي، بیا نو د درمندو نو د میده کولو
یعنې د غو بل وارې شي چې درمندونه په دوه ډوله میده

کیږي، لومړی ئه ئې گله گاوو ائې او دوهم په ځپر
میده کوي چې د دوو غو یو په واسطه سره کیږي لومړی
د گله گاوو په واسطه د درمندو میده کول:

کوم وخت چې بزگران د درمندو د غو بلو لو نیت
و کړي، نو دوي ور ځي د مخه په کلي کې و گرزي او د هر
غو یې چې د کاره ځځه خلاص وي هغه ته وائې چې سبا زموږ
غو بل دي غو یې دې راکه یائې خواستې یعنې د مرستې

په توگه ځني راولي یائې په (پل غو) ځني راولي. پلو غو
بدلانه بولي یعنې بیا ئې عوض غو یې ور کوي چې دو لس
یا ځلور لس غوائې برابر کې بیانو بر سیره پر بزگرانو

او ه تنه نور کومکي یا په مزدوري د غو بله د پاره د راوړي؛
زیاتره وختونه بزگران غو بل د ماښپین له خوا تیږ ي.
غو بل بر سیره پر غو یو دغه اسباب هم غواړي د غره
د بادامو یا انارې لښته، د هر بزگر پر سر باندې یوه یوه

دوه سپنو چپار ښاخه یا د غره د بادامو د لرگو دو ښاخي
دوي تناوه لوي و اښکي. د غو بل تیږ ل بزگران دغه غوائې
ټول له هر یو پر خپله اوږه باندې برابر ځنگ پر ځنگ

یو ځای سره تیږ ي د مرکز لومړی غو یې د گول په نوم
یادوي چې دغه غوا یې د لومړی سر ځځه ئې د اسې امو خته
کړي وي چې په غو بل کې ځای پر ځای راگرزي او پل

تکړه غو یې بیا د ټولو غو یو په سر کې تیږ ي چې دغه غو یې
د پرچټکوي او پر ژر ژر د زمند راگرزي دغه غو یې
بیاد سر گاز غو ی بولي بزگران چې غوا یې په غو بله

باندې و تیږ ي نو د وي په د، ودو لو باندې و بشل کیږي
پاته لري.

د۲۲مخ پاته

## د ځینو دلیسي یو تکړه...

او بیله هغه څخه د یوه مملکت ترقي او پرمختګ ناممکنه دی.

۲ اخلاق د ښو اخلاقو په درلودلو سره کولای سوای، چې د دوستانو سره رابطه ټینګه وساتو او ابدي سعادت مو په برخه سي.

۳- وفا: دا هم یوه لار ده چې کولای سوای چې د دغې لارې په ذریعه نفاق د جامعې څخه لیرې کړو. او د یووالي حس په خلکو کې قوي کړو.

٤- عدم خودخواهي:

یوازې ځان پیژندل یو بد ترینه صفت دی چې اعتماد او اعتبار د منځه وړي او د دښمنۍ اور قوي کوي.

۵- احترام د لویانو او شفقت پر کوچنیانو.

٦- علم او معرفت: چې د جامعې د ترقۍ اساس دی. او په دې لار کې ځوانان مهم رول لري.

۷ بل شی چې د ځوانانو د پاره ضروري دی هغه دا چې خپل وخت غنیمت وبولي او هیڅ کله د ا ګرانبها وخت بې کاره تیر نه کړي. حتی کوښښ وکي چې په لږ وخت کې ډیر کارونه سرته ورسوي.

۸- د وخت ویش: ځوانان باید درلودونکي د تقسیم اوقات وي او د هغه مطابق رفتار وکي.

د یوه ځوان د پاره په ۲٤ ساعته کې، اته کار، اته ساعته تفریح او اته ساعته خوب ضروري دي.

د۲۰مخ پاته

## ځوان ټولنې ته...

ترټا ! نیر لاندې را نه شي او کوښښ وکړه شي چې د ښو شرائطو په څخه کښې شو.

که چیرې په رشتیا سره ځوانان یو بو باید دودې ورو سته پاته ټولنې ته خدمت وکړو او د ا ارمان د امکان تر حده پورې عملي ساحې ته وصل کړو. زړه سوی او د ښه نیت درلودل باید ځان عادت وګرزوو، د هر چا د پاره خوشبختي په نظر کښې ولرو، خپله نیکمرغي د بل چا په نیکمرغي کې وپلټو او د شخصي غرائضو څخه بالکل باید صرف نظر وکړو په تیره بیا تبعیض بیخي په فکر کې را نه ګرزوو. نو همدغه وخت د چې موږ کولای شو ټولنه منوره وګرزوو او لکه چې د یو ځوان د پاره ښائي هغسې خدمت او حرکت وکړو نو موږ ځوانان باید یو د بل څه هیله ولرو چې خپل قدرت دی

د ګران افغانستان په پیشرفت او اعتلا کښې صرف کړي ځو چې د منورو ځوانانو او روښنفکرو خلکو د فدا کارۍ او زحمت په نتیجه کښې ګران وطن آباد او سرشار وګرزي.

د ځوانانو د بې یالیتوب په هیله.

---

د۲۳مخ پاته

## دحنان بارکزي...

**۱- تقابل:**

ستا له خولې څخه ګل زده کړي له ژړا
بلبل هم د سوز ژړا زده کړه له ما

**۲- حسن آعلیل**

د اسیرو زړه وتړل نه دي نو څه دي
چرو غوږو ته دي خم شوي کاکل ستا

**۳- تجنیس**

د جبین په چین یې زړونه وادهٔ چین کړه
وا یې خیست په د غه چین له چینه چین

**دوصل خیال:**

ستاد وصل خیال می نه ځي له خاطره
د مفلیس له فکره نه وځي کیمیا

**سیاه بختي:**

سیاه بختي لکه سایه را پسې ځغلي
چې دا ستاد تورو زلفو شوم اشنا

(د ۱۲ مخ پاته)

# د کندهار تعمیراتي نهضت

په دغه شل کلنه پروژه کښې یو عصري کلتوري مرکز، د پوهنتون ودانۍ، صناعتي دستګاوې، د احمدشاه بابا د لوی پارک په ګډون د ښار په هره برخه کې ودانۍ کې پارکونه هم په نظر کښې نیول شوي دي او هر کله چې دغه نقشه بشپړه شي، د کندهار بڼه بیخي اوړي او د نفوسو له حیثه نسبت اوس ته یو په دری کیږي.

اوس د کندهار تر احمدشاهي ښار د باندې ځیني کارتې نوې د جوړېدو په حال کې دي چې یوه ئې تر سرپوزي د باندې د میرویس مینې، بله ئې د صوفي مینې او دریمه ئې د منزل باغ کارتې په نامه یادیږي.

د صوفي مینې او میرویس مینې زیاتې ودانۍ سرته رسیدلي خو د منزل باغ د کارتې کورونه لا جوړ شوي نه دي چاتې چې کارتې په آینده کې شروع سي.



د ارګ د ودانۍ یوه برخه

اوسنی کندهار د تعمیراتو او عصري ودانیو له پلوه په درو برخو ویشل شوی دی، یوه برخه ئې مرکزي حیثیت لري او په هغه کې غلور لوی بازارونه او هغه کوڅې شاملې دي چې په پخواني حال پاته او څه پر لږ تحول ئې کړی دی او هغه ته اوس احمدشاهي ښار یا احمدشاهي کندهار وائي.

دوهمې برخې ته د احمدشاهي ښار ختیځې برخې او هغه نوې ودانۍ دي چې د منزل باغ لورته اوږدې شوي، او هلته پر پخوانۍ ګچ خانو باندې کارته هم د جوړېدو په حال کې ده

د کندهار دغې برخې ته ظاهرشاهي کندهار وائي.

د کندهار دریمه برخه د اوسني ښار لویدیځ ته پرته او د نوي ښار په ګډون، میرویس مینه او داسې نورې ودانۍ او سیمې پکښې شاملې دي او پر هغه د نادرشاهي کندهار نوم ایښودل شوی دی.

د کندهار ښار د ښارجوړولو او کور جوړولو د شل کلن ښاري پلان تر نقشې لاندې دی او له دغه کبله یو خو د هرې برخې ودانۍ د نقشې له مخه جوړیږي او پرته له نقشې څخه چاته اجازه نشته چې کور یا ودانۍ جوړه کړي او که څوک داسې کار وکړي او نقشه پرې د اشي هغه د منځه ځي.



د سردې د باغ یوه ښکلې ودانۍ

(د سید عکاس د البوم څخه)

# سید محمد عکاس

— ولې نه دخوا ئي د وختو هر عکس یوه یوه خاطره ده خو فکر کوم ... چې دغلام فاروق خان

نایب الحکومه عصر ؤ د اوسنی چهارسو دګنبدي پر سر یوه ډیره درنه میلمستیا شوی د ښار خوانین او مخور ټول ناست وه د هغه عکس

چې متأسفانه زما سره موجود نه دی یو په زړه پوری عکس ؤ . همدغه رنګه دنوموړي په وخت کښې

دارګ په برنډو کښې یو بل عکس چې تر اوسه پورې ډیر وخت تیرشوی دی مګر زما څخه ئی یادونه نه ده هېره شوي .

ودوستي پوښتنه مې دښاغلی سید عکاس څخه داوه چې که چیری داطلاعاتو او کلتور لوی مدیریت

ستاسره ستاسو د عکسونو په نمایش کې مرسته وکړی حاضر یاست هغه دننداري دپاره کښیږدی ؟ او بله دا چې دغه د

عکسونو البوم چې اوس ستاسره موجود دی غواړی چې ودوستانه څه په ورکړی او د چاپ سره وی ؟

ښاغلی سید عکاس په داسې حال کې چې داطاق له میدان څخه هغه تیت شوی عکسونه ټول او

پخپلو قطیو کی ئی ځای پر ځای کول داسی وویل : البته حاضر یم چې زما دعکاسي کار خلک وویني

او هغوی دخپل ښار دپخوانیو خاطراتو سره یو ځای یو ځای سی خو تراوسه دلته د اذهنیت موجود نه ؤ او نه چا د عکس سره

علاقه درلودل حتی اوس هم عکاسان بد ګڼي . ما سره ددې چې ډیری سکنجې او تهمتونه

ایدلی دی خو مقاومت می کړی دی او په خپل هنر کی ثابت پاته شوی یم .

داچې تاسو پوښتنه کوی چې دعکسونو البوم غواړی څه په وکړی . هیله لرم چې هغه دخپل

کورنی پاته کسانو ته زما دژوند دخاطراتو دپاره ونی په توګه پریږدم .

دخدای په امانی له مخه می

دهغه عکسونو څخه څو دانی وګرانو لوستونکو ته انتخاب کړل او په راورو سته کی به هم دامکان په صورت کی دکندهار

دمجلې دپاره په پرله کښې دسید عکاس دالبوم څخه ګرانو لوستونکو ته یوه یوه قطعه تاریخی عکس ارمغان کړو .

که څه هم د ۱۳۱۰ کال څخه راپدې خوا د کابل کالنی د آریانا مجلې او کابل مجلې

ددغه ښاغلی ډیر عکسونه په هغه وخت کی چاپ کړی دی .



# دکندهار دچارده ...

په ژوندون کې خورا ډیره تجربه درلوده دلی دوژل شوی وه باید چې دهمدې کلی په علمیانو کې یوه غوښتنی وای نه داچې

دروژنی خواری ئی پر موږ باندي تیریدی او دژوندون اړی یې د نورو دسره کیږی هغه بیت چې پښوا ولوستل شو هم دهغه دلیل یو لی چې یوه پیغله

ښځه دیوه با ناموسه ننګیالی ځوان څخه پیول دسر په چندنه ادا ه لري هر څوک داسی کار نشی کولای ډیر هله لیدل شوی دی چې دژوم ډیر دلوړی کوري څخه

وی وړاندی تر واده دناوی د کلی مشران و کوزی په ټینګه سره خواهش څنی وکړی چې موږ په ډیر ژړ ... ولی

هغوی هم ددوی خبره منلو وی پیاهم کوم وخت چې واده شي او ناوی سپره شي ددوی لاس نه ددیړی او که چیری هغوی هو کلی

نه د بل کلی څخه ناوی راوړی کیدی هغه نه ولی او په خپل کلی کې چې دیوه کوره

بل کور ته ناوی وړی هغه هم ... ولی . داؤ هغه ناوړه دود چې په چارده ... کښی دواج لري .

## ځینې [illegible]

تراس کلنی پورې هم کوچنی نابالغه وی .

ترټولو اطمینانی ستون او تکیه ګاه د هر تمدن علم او کتاب دی .

بدبختی داچه والی لری چې موږ ته حقیقی دوستان راپیژنی .

دافتخار دمنځه وړلو لپاره ترټولو ساده لاره دهغوی ستاینه ده .

د ۴۳مخ پاتې

# د کندهار د اشو کا...

د بل تر توصیف کولو د مخه د خپل ځان صفت مه کوی ولی چې باطلیږی. کوښښ وکړی چې نور ستاسی ثناووایی او صفت مو وکړی نو په دی سره به تاسی یو ممتاز مقام

پیدا کړی او په دې سره به د نورو دوستی ستاسی سره ډیره شی او که مو داسی ونه کړه نو به نوم بدا او قیمت به شی او د ښمنی به د د سره ډیره شی. څوک چې د نورو بدوایی

او خود بینه وی نو تاسی په یقین سره و پوهیږی چې ښه نه کوی که غواړی چې تر نورو په عمل کښې ښه شی د خپل نفس په مقتضیاتو پسی مه ځی د نورو اعتبار تاسی د نورو

په درس او عبرت سره قبلولای شی او علم و پوهنه مو په هغه سره زیاتیدلای شی، پوهنه او علمی اکتساب یو امانت دی چې باید له نورو سره مبادله شی او ونورو ته

دا امانت ورسول شی په ډاډ ینه سره وا یم چې ددې روبی ښځتنان دی نه بیر یږی او خپلی تقوا ته دی تر دی لاز یاته ادامه ورکی... د پاچهی پر اتم کال باندی فی یاد رسن

کالنګه فتح کړ او په دی جنګ کښې (۱۵۰۰۰۰) کسه ژوندی و نیول سوه او ځنی ئی له خپله ملکه څخه فراره کړه او سل زره کسه و وژل سوه او تقریباً د غومره مړه سوه. پاچا په دی کې نه سره ډیر متأ لم او متأ ثر شو او په زړه کښې ئی

درد پیدا شو ولی چی دی په تقوا کښې ډیر کوښښ کوی او د ژوند یو وګړو له نیولو او ځورولو څخه پرهیز کوونکی دی.

ګولواك دغه صحنه په غم سره و لیدله او د رحم او عاطفی احساس پکښې پیدا شو په کالنګه کښې له پراهیمو او سراهیمو څخه تقوی کوونکی وګړی ډیر او سیږی

مګر بیا هم پخپلو منځو کښې دوی همدغسی رفتار کوی چې ځینی ئی مری او ځینی وطن پر یږدی او نور پر اهمنیان د دوی و دی روبی ته کوم اهمیت نه ور کوی و دوی ته

دالازمه ده چې د ګولواك له ګډ ودو شوړ نا تو سره اشنا شی او پرده باندی د مور و پلار په څیر سره اعتبار ولری

او له خپلو ملګرو سره د ښتین وی و ئی نه غولوی په زیاته بیا باید له مریانو او زیر دستانو سره حقی الوسع مهربانی او خواخوږی وشی ولی تر هرڅه زیات دوی

و رحم و عاطفی ته احتیاج لری. خو لنډه دا چې ګولواك پر تیر سوی وضعیت باندی چې موږ ئی د لته په لنډه صورت سره تذکر وکړ د نورو اقوامو په څیر سره ډیر افسوس او پښیمانی کوی.

د ۴۵مخ پاتې

# شوروی اتحاد ته د ریچارد نکسن سفر

تسلیمانو د مخنیوی د پاره ګامونه مخ ته و اخلی.

خود بشریت عمده سوال به هغه وخت د حل لیاره پیدا کړی چې لوی هیوادونه تر بین المللی نظارت لاندی

د ګرلو ستراتیژیکی وسلو د ذخیرو د منځه وړلو په غرض موافقی ته ورسیږی. خو ترا وسه پوری لوی هیوادونه د هغه خطر په تناسب چې ستراتیژیکی ذروی وسلی یې

د بشریت د پاره لری کومی قاطعی او فیصله کوونکی موافقی ته چی د دغو خطرو نو مخه و نیسی نه دی رسیدلی.

د امریکا او شوروی اتحاد د مشرانو د خبرو په دوهمه ورځ د دواړو هیوادو تر منځ د طبی همکاری او محیطی

ساتنی په باب (۷) موافقی لاس لیک سوی او له دغو موافقو څخه ور وسته دوې نوری مهمی موافقی هم لاس لیک سوی چې یوه یې د دواړو هیوادو د الوتکو تر منځ د بحری او

هوایی ټکر د مخنیوی او بله یې د نړی د مهمو موضوع ګانو یعنی د ستراتیژیکی وسلو د لړوالی په باب وه په دې

ډول د الومړی په پلاده چې د نړی دوه ستر قدرتونه د هغو

تو غندیو په برخه کی چې اتومی قدرت لری موافقی ته رسیدلی دی. او د ډیری لوبی مسابقی څخه لاس اخلی. د دې

موافقی سره سم امریکا پخپله خاوره کی د یوې ذروې دستګاه د جوړ ولو کار ټال کړ. د اصلاح څخه

# د محمد علي کلي او جو فرايزر ترمنځ لوبه به سږ کال وشي

فلادلفيا: پاتسي دورهم دنړۍ د بکس د درانه وزن د مسابقو مرتب دغه اوازې چه د محمد علي او جو فرايزر ترمنځ لوبه سږ کال کيږي ردې کړې.

محمدعلي کلي چې د کاناډا د بکس له قهرمان جورج شووالو سره په روانه مياشت کې د مسابقې د پاره تياري نيسي پاهغو د ربو پروګرامونو کې چه د بي بي سي راډيو خپاره کړل وويل له جو فرايزر سره به دده لوبه د اسد په مياشت کې وسي

خو د مسابقې مرتب دورهم خبر ليکونکو ته ډاډ ورکړ چې د فرايزر او محمدعلي ترمنځ لوبه به په راتلونکې کال کې وشي.

# د برنارډ په باب فلم برابريږي

لندن: د برتانيې د فلم اخستلو يوه ستره کمپنۍ غواړي چې د جنوبي افريقې د زړه د پيوند د لوړ مشهور جراح پروفيسر کرسټ برنارډ په باب يو فلم برابر کړي.

برنارډ پرون د دغه مطلب د خبرو کولو د پاره لندن کې وويل. تر اوسه پورې په دغه باب اساسي ترتيبات ندي نيول شوي.

برنارډ چې د خپلې ميرمن بارا بار سره د يوې هفتې د پاره د وينا کولو په غرض د نيو يارک نه لندن ته تللى وويل چې د فلم اخستلو څنې مؤسسې د خوکالو را پدې خوا غواړي زما د ژوند فلم برابر کړي په دې ورستيو وختو کې د انګلستان فلم اخستلو يوه ستره کمپنۍ غواړي د اجازې په اخستلو سره د برنارډ د ژوند څرنګوالى نه په استفادې کولو چې په دې وختو کې د برتانيې په يوه خپرونه کې چاپ شوى يو فلم برابر کړي خو ده د فلم اخستلو د موسسې نوم ونه ښود.

# سړي خوړونکي نهنګ

ليګاس: د نايجيريا د ختيځ او مرکزي ايالت د سيمو خلکو د عسکري او پوليسي قواؤ څخه د هغه لوى نهنګ د وژلو د پاره د مرستې غوښتنه کړيده کوم چې تر اوسه نې لس کوچنيان وژلي دي.

په دې غوښتنه کې ويل شوي دي چې د وى نجونې هم د دغه نهنګ په ذريعه په يوه کلي کې د فشار له امله مړې شوي دي.

کندهار:

په همدې مياشت کې يو ۵۶ کلن سړى چې محمدصديق نوميږي د خپلې ګټې او سرمايي د زياتيدو په خاطر کوچنيان غلا کول د کندهار د امنيه قوماندانۍ د پوليسو د غلا د آمريت له خوا ونيول سو.



محمدصديق د کوچنيانو تښتونکى

............................................

منبع وويل: غله به کوچنيان په خپله دوبقه کې پيچل او تښول به ئې څو په همدې ترتيب يو ورځ چې ئې صدق الله نومى هلک په دوبقه کې د غلا کيدو لپاره پيچى د هلک د ژړا او نارو په سبب د پوليسو لاس ته ورغلى همدغه رنګه منبع زياته کړه نوموړي غله د تحقيقاتو په جريان کې څرګنده کړې ده د همدې هلک د غلا کيدو په شمول مى دوه هلکان نور هم د ښکار پور بازار څخه غلا کړي دي.

د کندهار د امنيه قوماندانۍ د غلا د آمريت مامور ښاغلي محمد هاشم وويل: د نوموړي غله تحقيقات په شرعي وثيقه کې داخل او په دغه باب تحقيقات د غلا په آمريت کې دوام لري.

منبع وويل: د تحقيقاتو تر بشپړيدو وروسته به دغه سړي په خپله جزا ورسيږي.



… د افغان او انگلیس د دوهم جنگ یوه منظره په عکس کی څو کندهاري زړور ملي مجاهدين پر غليم د سخت يرغل په حال کي دي (د کندهار د موزيم د تاريخي تابلوګانو څخه)



د خپلواکۍ څلي

د کندهار دولتي مطبعه